# فهرست مضامین


| شمار | مضمون | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | تقریظ | ا |
| ۲ | دیباچه | ب |
| ۳ | د غازي ملت د حکومت برکات | ج |
| ۴ | ضرورت د علم دیني او باعث د تالیف | ط |
| ۵ | د کتاب متعلق یو څو ضروري هدایات | یا |
| ۶ | احکام د شریعت | یب |
| ۷ | امام ابو یوسف رح | یو |
| ۸ | امام محمد رح | یز |
| ۹ | کتاب الطهارت | 1 |
| ۱۰ | د اودس او د غسل فضیلت | ۱ |
| ۱۱ | د اودس فرایض | ۲ |
| ۱۲ | د اودس سنن | ۴ |
| ۱۳ | د اودس مستحبات او مکروهات | ۷ |
| ۱۴ | فائده | ۷ |
| ۱۵ | د اودس کولو مسنونه طریقه او نورے مسئلے | ۱۵ |
| ۱۶ | په کوم شي چه اودس ماتیږي د هغے بیان | ۱۱ |
| ۱۷ | د غسل اقسام | ۲۰ |
| ۱۸ | د جنابت بیان | ۲۱ |
| ۱۹ | د غسل طریقه او نورے مسئلے | ۲۶ |
| ۲۰ | د وړے او لوئے بے اودسئ احکام | ۳۰ |
| ۲۱ | متفرق مسئلے | ۳۲ |
| ۲۲ | په کومو اوبو اودس او غسل جائز دے | ۳۳ |
| ۲۳ | او په کومو اوبو ناجائز دے. | // |
| ۲۴ | د کوهي بیان | ۳۸ |
| ۲۴ | د جوتے بیان | ۴۳ |
| ۲۵ | د تیمم مسئلے | ۴۵ |
| ۲۶ | په موزو مسح کول | ۵۷ |
| ۲۷ | په خوږ ځائے یا په پټئ مسح کول | ۶۲ |
| ۲۸ | د معذورو احکام | ۶۴ |
| ۲۹ | د حیض او استحاضے بیان | ۶۹ |
| ۳۰ | د نفاس بیان (د حیض احکام) | ۷۱، ۷۷ |
| ۳۱ | د استحاضے احکام | ۷۹ |
| ۳۲ | د حقیقي نجاست لرے کولو بیان | // |
| ۳۳ | د دباغت بیان | ۹۱ |
| ۳۴ | د اودس ماتي آداب | ۹۳ |
| ۳۵ | د استنجا بیان | ۹۵ |
| ۳۶ | کتاب الصلوة | ۹۸ |
| ۳۷ | حد د بلوغ | ۱۰۱ |
| ۳۸ | د نمانځه د وختونو بیان | // |
| ۳۹ | د بانګ او د اقامت بیان | ۱۰۷ |
| ۴۰ | طهارت د بدن او د جامے د نمانځه د پاره شرط دے | ۱۱۳ |
| ۴۱ | طهارت د مکان | ۱۱۴ |
| ۴۲ | ستر د عورت | // |
| ۴۳ | نیت د نمانځه | ۱۱۷ |
| ۴۴ | قبلے ته مخ کول | ۱۲۱ |
| ۴۵ | د نمانځه مستحبه طریقه | ۱۲۲ |
| ۴۶ | د نمانځه فرایض | ۱۲۵ |
| ۴۷ | د نمانځه واجبات | ۱۲۸ |

| شمار | مضمون | مخ |
|---|---|---|
| ۴۸ | دَ نمانځه سُنن | ۱۳۱ |
| ۴۹ | دَ نمانځه آداب او مستحبات | ۱۳۵ |
| ۵۰ | دَ قرآت بیان | ۱۳۶ |
| ۵۱ | دَ قرآت غلطی | ۱۴۰ |
| ۵۲ | دَ جماعت بیان | ۱۴۲ |
| ۵۳ | دَ اقامت بیان | ۱۴۴ |
| ۵۴ | دَ اقتدا صحیح کیدلو شرطونه | ۱۴۶ |
| ۵۵ | په جماعت کښے دَ شاملیدلو او دَ نه شاملیدلو بیان | ۱۵۴ |
| ۵۶ | دَ مقتدی په حق کښے | ۱۵۷ |
| ۵۷ | دَ بنا صحیح کیدلو شرطونه | ۱۶۵ |
| ۵۸ | په کوم شیزونو سره چه نمونځ ماتیږی دَ هغے بیان | ۱۷۰ |
| ۵۹ | دَ سترے بیان | ۱۷۷ |
| ۶۰ | کومے خبرے چه په نمانځه کښے مکروه دی دَ هغے بیان | ۱۷۸ |
| ۶۱ | دَ جماعت احکام | ۱۸۳ |
| ۶۲ | دَ وتر بیان | ۱۸۵ |
| ۶۳ | دَ سنتو او نفلو بیان | ۱۸۷ |
| ۶۴ | تحیة الوضوء | ۱۹۲ |
| ۶۵ | تحیة المسجد | // |
| ۶۶ | صلوٰة اشراق | // |
| ۶۷ | صلوٰة اوّابین | ۱۹۳ |
| ۶۸ | نمونځ دَ تهجد | // |
| ۶۹ | صلوٰة تسبیح | ۱۹۴ |
| ۷۰ | نوافل دَ سفر | ۱۹۵ |
| ۷۱ | نماز قتل | // |
| ۷۲ | صلوٰة استغفار | ۱۹۶ |
| ۷۳ | دَ استخارے بیان | // |

| شمار | مضمون | مخ |
|---|---|---|
| ۷۴ | صلوٰة حاجت | ۱۹۷ |
| ۷۵ | نماز کسوف او خسوف | ۱۹۸ |
| ۷۶ | دَ استسقاء بیان | ۱۹۹ |
| ۷۷ | دَ تراویح بیان | ۲۰۰ |
| ۷۸ | دَ شپیتے بیان | ۲۰۵ |
| ۷۹ | دَ قضا نمونځ راگرځولو بیان | ۲۰۶ |
| ۸۰ | دَ سجدهٔ سهو بیان | ۲۱۰ |
| ۸۱ | په تاجوړتیا کښے دَ نمونځ کولو بیان | ۲۲۸ |
| ۸۲ | په سفر کښے دَ قصر کولو بیان | ۲۳۱ |
| ۸۳ | دَ صلوٰة خوف بیان | ۲۴۵ |
| ۸۴ | دَ جمعے بیان | ۲۴۳ |
| ۸۵ | دَ جمعے نمونځ په چا فرض دے | ۲۴۵ |
| ۸۶ | دَ جمعے دَ صحت شرطونه | ۲۴۷ |
| ۸۷ | دَ جمعے دَ خطبے مسئلے | ۲۴۹ |
| ۸۸ | دَ جمعے دَ نمانځه مسئلے | ۲۵۱ |
| ۸۹ | دَ اختر دَ نمانځه مسئلے | ۲۵۲ |
| ۹۰ | دَ تکبیرات تشریق بیان | ۲۵۷ |
| ۹۱ | الجنائز | ۲۵۹ |
| ۹۲ | دَ ځنکدن بیان | ۲۶۰ |
| ۹۳ | دَ مړی لمبولو مسئلے | ۲۶۱ |
| ۹۴ | دَ کفن مسئلے | ۲۶۷ |
| ۹۵ | دَ جنازے وړلو بیان | ۲۷۰ |
| ۹۶ | دَ جنازے دَ نمانځه مسائل | ۲۷۱ |
| ۹۷ | دَ مړی ښخولو بیان | ۲۷۹ |
| ۹۸ | دَ مړی متفرق مسئلے | ۲۸۱ |
| ۹۹ | دَ شهید احکام | ۲۸۴ |

| مضمون | مخ |
|---|---|
| په کعبه شریفه کښے د لمونځ کولو بیان | ۲۸۷ |
| د بانګ او د لمانځه لفظی ترجمه | ۲۸۹ |
| **کتاب الزکوٰة** | ۲۹۲ |
| زکوٰة په چا فرض دے | ۲۹۷ |
| د زکوٰة ادا کولو بیان | ۲۹۹ |
| مصارف د زکوٰة | ۳۰۳ |
| د سائمه څاروو زکوٰة | ۳۰۷ |
| د اوښانو نصاب | ۳۱۰ |
| د غوا او د میښو بیان | ۳۱۱ |
| د بیزو او د ګډو نصاب | ۳۱۲ |
| د عشر بیان | ۳۱۳ |
| د صدقه فطر بیان | ۳۱۷ |
| **کتاب الصّوم** | ۳۱۹ |
| د روژے فضیلت | // |
| د لیلة القدر فضیلت | ۳۲۱ |
| د شکی روژے بیان | ۳۲۴ |
| د میاشتے لیدلو بیان | ۳۲۶ |
| د نیت د روژے بیان | ۳۲۷ |
| په کومو شیزونو سره چه روژه نهٔ ماتیږی د هغے بیان | ۳۳۰ |
| روژه چه پرے ماتیږی او قضا لازمیږی د هغے بیان | ۳۳۱ |
| روژه چه پرے ماتیږی او قضا او کفاره دواړه لازمیږی د هغے بیان | ۳۳۵ |
| په کومو شیزونو سره چه روژه مکروه کیږی د هغے بیان | ۳۳۸ |

| شمار | مضمون | مخ |
|---|---|---|
| ۱۲۲ | د پیشمنی او روژه ماتی بیان | ۳۳۹ |
| ۱۲۳ | د روژے نه نیولو بیان | ۳۴۲ |
| ۱۲۴ | د روژے ماتولو عوارض | ۳۴۵ |
| ۱۲۵ | د کفارے بیان | ۳۴۶ |
| ۱۲۶ | د فدیے بیان | ۳۴۹ |
| ۱۲۷ | د نذر روژے بیان | ۳۵۲ |
| ۱۲۸ | د نفلی روژے بیان | ۳۵۵ |
| ۱۲۹ | د اعتکاف فضیلت | ۳۵۷ |
| ۱۳۰ | د اعتکاف اقسام | ۳۵۸ |
| ۱۳۱ | د اعتکاف احکام | ۳۶۰ |
| ۱۳۲ | **کتاب الحج** | ۳۶۴ |
| ۱۳۳ | شرائط د حج | ۳۶۵ |
| ۱۳۴ | د احرام اقسام | ۳۶۷ |
| ۱۳۵ | د افراد یعنے د صرف حج کولو مسنونه طریقه | // |
| ۱۳۶ | د میقات بیان | ۳۸۱ |
| ۱۳۷ | د احرام بیان | ۳۸۲ |
| ۱۳۸ | د احرام ترلو شرائط او واجبات وغیره | ۳۸۳ |
| ۱۳۹ | د احرام ممنوعات وغیره | ۳۸۴ |
| ۱۴۰ | تلبیه | ۳۸۵ |
| ۱۴۱ | د طواف اقسام | // |
| ۱۴۲ | د طواف شرائط او واجبات وغیره | ۳۸۶ |
| ۱۴۳ | د سعے شرائط او واجبات وغیره | ۳۸۷ |
| ۱۴۴ | د وقوف عرفے شرائط وغیره | ۳۸۹ |
| ۱۴۵ | د منٰی احکام | ۳۹۰ |
| ۱۴۶ | د حج فرائض وغیره | // |
| ۱۴۷ | د عمرے بیان | ۳۹۲ |

| شمار | مضمون | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۱۴۸ | دَ قِران بیان | ۳۹۳ |
| ۱۴۹ | دَ تمتع بیان | ۳۹۴ |
| ۱۵۰ | دَ جنایت بیان | ۳۹۵ |
| ۱۵۱ | دَ احصار بیان | ۳۹۶ |
| ۱۵۲ | مدینے منورے له تله | ۳۹۷ |
| ۱۵۳ | کتابُ النِکاح | ۳۹۹ |
| ۱۵۴ | دَ نکاح متعلق | // |
| ۱۵۵ | دَ نکاح تړلو بیان | ۴۰۰ |
| ۱۵۶ | دَ چا سره چه نکاح حرام دے دَ هغو بیان | ۴۰۳ |
| ۱۵۷ | دَ نکاح دَ ولی بیان | ۴۰۹ |
| ۱۵۸ | دَ کفائیت بیان | ۴۱۵ |
| ۱۵۹ | دَ مهر بیان | ۴۱۶ |
| ۱۶۰ | دَ مهر مثل بیان | ۴۱۹ |
| ۱۶۱ | دَ بیبیانو بیان | ۴۲۰ |
| ۱۶۲ | دَ کافرانو دَ نکاح بیان | ۴۲۱ |
| ۱۶۳ | کتابُ الرِّضاع | ۴۲۳ |
| ۱۶۴ | کتابُ الطّلاق | ۴۲۸ |
| ۱۶۵ | دَ طلاق بیان | // |
| ۱۶۶ | په ځنه شرط پورے دَ طلاق متعلق کولو بیان | ۴۳۴ |
| ۱۶۷ | طلاق دَ مریض | ۴۳۶ |
| ۱۶۸ | دَ رجعت بیان | ۴۳۷ |
| ۱۶۹ | دَ اِیلا بیان | ۴۳۸ |
| ۱۷۰ | دَ خلع بیان | ۴۴۰ |
| ۱۷۱ | دَ ظهار بیان | ۴۴۲ |
| ۱۷۲ | کفاره دَ ظهار | ۴۴۴ |
| ۱۷۳ | دَ لعان بیان | ۴۴۵ |

| شمار | مضمون | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۱۷۴ | دَ نامرد خاوند په ځنه حکم دے ۔ | ۴۴۶ |
| ۱۷۵ | عدت دَ طلاق | ۴۴۸ |
| ۱۷۶ | عدت دَ وفات | ۴۴۹ |
| ۱۷۷ | دَ سوګ بیان | ۴۵۱ |
| ۱۷۸ | ثبوت دَ نسب | ۴۵۲ |
| ۱۷۹ | دَ بچی دَ پرورش حق | ۴۵۵ |
| ۱۸۰ | دَ نفقے بیان | ۴۵۷ |
| ۱۸۱ | دَ استوګنے کور | ۴۵۹ |
| ۱۸۲ | دَ خاوند حقوق | ۴۶۰ |
| ۱۸۳ | کتاب الایمان | ۴۶۲ |
| ۱۸۴ | دَ قسم بیان | // |
| ۱۸۵ | دَ قسم الفاظ | ۴۶۴ |
| ۱۸۶ | دَ قسم کفاره | ۴۶۵ |
| ۱۸۷ | کورته دَ نه داخلیدو قسم | // |
| ۱۸۸ | دَ نه خوړلو سکلو قسم | ۴۶۷ |
| ۱۸۹ | دَ خبرو نه کولو قسم | ۴۶۸ |
| ۱۹۰ | دَ قسم متفرقے مسئلے | ۴۶۹ |
| ۱۹۱ | دَ نذر بیان | ۴۷۱ |
| ۱۹۲ | کتابُ الحدُود | ۴۷۵ |
| ۱۹۳ | دَ حد مسئلے | // |
| ۱۹۴ | دَ مُرتد حکم | ۴۷۶ |
| ۱۹۵ | دَ لقطے بیان | ۴۷۸ |
| ۱۹۶ | دَ مفقود بیان | ۴۸۰ |
| ۱۹۷ | دَ وقف بیان | ۴۸۱ |
| ۱۹۸ | کِتابُ الصّید والذّبائح | ۴۸۲ |
| ۱۹۹ | دَ ښکار بیان | // |

| شمار | مضمون | مخ | شمار | مضمون | مخ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲۰۰ | کوم حیوان حلال دے او کوم حرام | ۴۸۳ | ۲۰۷ | د زرو او د ریښمو استعمال | ۴۹۴ |
| ۲۰۱ | د ذبحے بیان | ۴۸۴ | ۲۰۸ | د بیان صفائی | ۴۹۶ |
| ۲۰۲ | د قربانئ کولو فضیلت | ۴۸۵ | ۲۰۹ | د ستر بیان | ۴۹۹ |
| ۲۰۳ | د قربانئ مسئلے | ۴۸۶ | ۲۱۰ | د غیبت بیان | ۵۰۱ |
| ۲۰۴ | کتاب الحظر والاباحة | ۴۹۳ | ۲۱۱ | د سلام بیان | ۵۰۳ |
| ۲۰۵ | د خوراک سکاک بیان | // | ۲۱۲ | صلۂ رحمی | ۵۰۴ |
| ۲۰۶ | د نشے د شیزونو بیان | ۴۹۴ | ۲۱۳ | مختلف مسئلے | // |


# یادګیرنه

د فهرست په آخر کښے دا ذکرنه صرف مناسب بلکه ضروری ګنړم چه د "فتاوی ودودیه" مؤلف مولنا مولوی محمد ابراهیم صاحب ابن حضرت مولنا عبدالمجید صاحب د فتاوی ودودیه د تدوین نه پس په قضائے الٰهی سره د شوګر په میاشت کښے وفات شو۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ۔ د مرحوم تاریخ وفات دا دے:۔ شپه د جمعة المبارک تخلسم د شعبان المعظم سنه ۱۳۷۰ھ په حالت د مرض کښے اعلیحضرت والئ سوات د دوئ د علاج په سلسله کښے قابل قدر مالی امداد کړے وو۔ او کوم وخت چه وفات شو نو اعلیحضرت بادشاه صاحب په خپل موټر کښے د هسپتال سیدو شریف نه د دوئ لاش "بازارګی بونیر" ته په قدر و احترام سره اولیکلو او د دوئ په تکفین تجهیز او مزار جوړولو کښے ګرا نقد رمالی امداد وکړو۔ مرحوم په آخری ورزو کښے یو منظوم مناجات لیکلے وو۔ او خپل والد صاحب ته ئے دا وصیت کړے وو چه دا نظم دِ په "فتاوی ودودیه" کښے ضرور شامل شی۔ او ماته ئے هم د خط په ذریعه دا ارشاد فرمایلے وو چه ځما د وفات نه پس په فتاوی ودودیه کښے دِ ځما تاریخ وفات او لیکلے شی۔ له دے وجهے نه ما ځکښے د هغوئ د وفات او تاریخ وفات ذکرا وکړو۔ او لاندې د هغوئ هغه منظوم مناجات هم درج کوم۔ الله تعالیٰ دِ د هغوئ مغفرت او خپل بے پایانه رحمت نصیب کړی۔ او اعلیحضرت والئ سوات دِ د علم پرورئ په وجه همیشه کامران او شادمان وی۔ آمین

# کتاب الزکوٰة

زکوٰة دَ ارکانِ اسلام نه یو رکن دے - دَ رمضان فرض کیدو نه مبینه دَ هجرت په دویم[1] کال کښې فرض شوے و - او تر قیامته پورے ئے فرضیت باقی دے - او په قرآن شریف کښې دَ زکوٰة ذکر دوه دیرش[۳۲] ځایه مانځه سره متصل راغلے دے - زکوٰة عبادت مالی دے په چا باندے چه فرض وی - او نه ئے ورکوی - دَ قیامت په ورځ به هغه له سخت عذاب ورکیږی - صحیح حدیث[2] دے چه چاله خدائے پاک مال ورکه - او هغه ئے زکوٰة و نه ایست - دغه مال به دَ قیامت په ورځ یو لوئے زهرناک کنجے مارشی - دَ مرئ نه به ئے تاؤشی - او دواړه وخکی به ئے شوکوی - وائی به چه ځه ستا مال وُم - ستا خزانه وُم - دویم حدیث[3] دے - چه دَ چا ځنه سره او سپین وی او زکوٰة ئے نه اوباسی - دَ قیامت په ورځ به هغه له دَ اور تختے جوړے کړے شی - اول به ئے دَ دوزخ په لمبو سرے کی - بیا به پے دَ ده دواړه اړخے او ملا او وچولے داغی - او کوم وقت چه دغه تختے سړیږی - بیا به سرے کیږی - او دارنګ به پے داغلے کیږی -

مونږ که دَ تحقیق په نظر سره اوګورو - نو دا ښکاره خبره ده - چه بنیادم دَ خپل ځان مالک نه دے - دغه وجه ده چه خودکشی یعنے ځان وژل حرام دی - هم په شریعت کښې او هم دَ خدائے منونکو په قانون کښې - ځکه چه دا په بېړدی ملکیت کښې بے ځایه تصرّف کول دی - حمر نز نفس - بدن - قوت - دماغ - مرګ ژواک وغیره هرڅه چه دی - دَ دے ټولو اختیار خاص خدائے پاک لره دے - هغه خالق دے - او مالک - نو چه بنده دَ خپل ځان مالک نه شه - دَ مال به څه رنګ مالک شی - مال که ورکړے نو هم خدائے پاک - پس ډیره دَ افسوس خبره ده - چه کوم مال مونږ له خدائے پاک راکړے دے - دَ هغے نه زکوٰة نه اوباسو - او دَ هغه په څیز کښې دَ هغه نافرمانی کوو - او حال[4] دا دے چه زکوٰة ایستل دَ مال خیرے لرے کول دی - او دَ ګناه نه خلاصیدل - دغه وجه ده چه په انبیاؤ علیهم السلام باندے زکوٰة نه و فرض -

[1] دا بیان دَ در مختار دے - لیکن په فیض الباری کښې راوړی دی چه زکوٰة فرض شوے په مکه معظمه کښې و - او دَ نصاب تعیین په مدینه منوره کښې شوے - ۱۲ منه [2] بخاری شریف ۱۲ [3] مسلم شریف ۱۲ [4] در مختار و شامی ۱۲

او اعتدال ورله هم جائز نه وی -

زکوٰة په چا فرض ده

زکوٰة[1] په هغه مسلمانانو فرض ده - چه مالک وی د نصاب زائد د حاجت اصلی نه او فارغ د قرضه نه - او دوی بالغ عاقل آزاد - نو څوک چه مالک د دے نصاب نه وی - زکوٰة پے فرض نه دے - او که د مذکوره نصاب مالک څوک - لیکن نابالغ دے - یا بالکل لیونے وی هم پے فرض نه دے - او په مړی یا لیونی زکوٰة نشته

**مسئله[2]** :- د سپینو زرو نصاب دوه پنځوس نیمے تولے دے - او د سرو اوه نیم تولے - یعنی د چا څخه چه د حاجت اصلی نه سوا کم نه کم مذکوره مقدار سپین زر وی - یا سره او د کاله پورے یې په ملکیت کښې باقی وی - نو د کال په تیریدو سره پے زکوٰة ادا کول واجب دی لیکن د کاله پورے په ملکیت کښې د باقی پاتے کیدو نه دا مراد نه دے - چه په منځ کښې نه وی کم شوے - بلکه مطلب دا دے - چه د کال په اول او آخر کښې که نصاب کامل وی - پس زکوٰة واجب دے - اګر که په منځ کښې څه ورځے د نصاب نه کم شوے هم وی - مثلاً د سړی څخه اته تولے سره د پنځو شپږو میاشتو پورے وو - بیا د نصاب نه کم شو - لیکن دوه درے میاشتے پس بیا نصاب پوره شه - نو زکوٰة واجب دے - البته که مخکښے مال یې د کال د ختمیدو نه بالکل ختم شه - او اوس بیا د نصاب مالک شه نو د هغه مخکښی زکوٰة پے نشته - او د دے نصاب کال به د اوس نه شروع کیږی -

**مسئله[3]** :- که د چا څخه د نور ضرورت نه سوا د نصاب موره روپئی وغیره څو وے - لیکن د هغه موره پے د بل قرض هم وه - نو زکوٰة پے واجب نه دے - او که قرضه پے د هغه نه کمه وه - لیکن صورت دا وی چه د قرضے ادا کولو نه پس ورسره باقی د نصاب نه کم پاتے کیږی - نو هم زکوٰة واجب نه دے -

مثلاً سړی څخه یو نیم سل روپئے وے - خو په ده باندے دوه مره یا دے نه زیاته قرضه هم وه - نو زکوٰة پے نشته - او که قرضه پے صرف سل لس روپئی وه مثلاً - نو هم پے زکوٰة واجب نه دے - ځکه چه باقی فقط څلوېښت

---

[1] درمختار ورد المحتار ۱۲ [2] د سپینو زرو د زکوٰة نصاب دوه سوه درهمه دے شرعی - او په دراهم کښې معتبر دے وزن د اوو - یعنی دا وزن معتبر دے - چه لس درهم برابر وی د اوو مثقال سره - د مثقال په مقدار کښې اختلاف شته - لیکن قوی خبره دا ده چه یو مثقال څلور نیمے ماسے دے - اکثرو عالمانو هم دے له ترجیح ورکړے - نو چه لس درهم برابر دی د اوو مثقالو سره - نو دوه سوه درهم برابر شو د یو سل څلویښت مثقال سره - د دے ماسے شپږ سوه دیرش دی - چه دا په دولس تقسیم کړے شوے ½۵۲ تولے خارج قسمت شه دا د سپینو زرو نصاب دے - او د سرو زرو نصاب شل مثقاله دے - د شلو مثقالو ماسے اتیا لس دی - نو چه په دولس تقسیم شوے - او وه نیم تولے خارج قسمت شه ۱۲ محمد ابراهیم رحمة الله تعالیٰ علیه [3] شرح البدایه وشرح التنویر ۱۲ [4] شرح البدایه ۱۲

پاتے کیږی - او دا کے دی د نصاب نه - او که قرضه پے پنځوس روپئے وه - مثلاً نو د
سلو روپونه پے زکوٰة البسته واجب دی - ځکه چه دا زائد دی - د نصاب نه - او
فارغ دی د قرضے نه -

مسئله :- که زکوٰة ادا کول پے واجب شو - او بیس د هغے نه مقروض شه -
په دے سره واجب شده زکوٰة نه غورزیږی - بلکه هغه زکوٰة ئے په ذمه باقی دے -

مسئله :- که مثلاً د چا سره د ضرورت نه زائد دوه سوه روپئے موجود وی
او د هغے کال لا نه وی پوره شوے چه سل روپئے ورته نورے وشوے - نو د دے سلو
حساب به جدا نه کیږی - بلکه د هغے سره به شامل کړے شی - چه د هغه
دوو سوو روپو کال پوره شی - مونږ به وایو چه د دریواړه سوه روپو کال پوره شه
نو د دریو سوو چه څه زکوٰة کیږی - هغه به ادا کړے شی - غرض دا دے چه کوم زکاتی
مال ورته په دغه کال کښی دننه حاصل شوے وی - هغه به د مینځنی مال نصاب
سره شامل کړے کیږی -

مسئله :- د سرو او د سپینو کالی - لوخی وغیره هرڅه چه وی په هغے کښی
زکوٰة شته - برابره خبره ده چه د استعمال وی - او که د پرتوالی - البته که د
نصاب نه کم وو - او څه نور مال ورته هم داسے نه وُ - چه زکوٰة په کښی داخله او
نصاب پے پوره کیده - بیا واجب نه دے -

مسئله :- که د چا سره لږ سره وو - او لږ سپین او نصاب د یو پوره کیده
نه - نو د دواړو مجموعه قیمت ته به کورو چه دوه پنځوس نیمے تولے سپینو یا دوه نیم تولے
سرو ته رسی او که نه - که رسیده نو زکوٰة واجبا دے - او که یو ته هم نه رسیده
او نور څه مال ورته هم داسے نه وُ - چه زکوٰة په کښی داخله - او نصاب پے پوره کیده -
نو واجب نه دے - او که سره د خپل نصاب موره وو - او سپین د خپل نصاب موره
وُو - نو په دے صورت کښی د دواړو قیمت لګولو ته حاجت نشته - خو د هر یو زکوٰة
دِ علی الحساب ورکی - البته که په دے صورت کښی هم د مجموعه قیمت لګول غواړی
نو په دے شرط سره جائز دی - چه په کومه طریقه په قیمت لګولو کښی د غریبانانو
فایده وی - قیمت په هغه طریقه ولګولے شی -

مسئله :- فرض که چه په یوه زمانه کښی د سرو نیمه توله په دیرش روپئے

ﮯ شامی ۱۲ ﮯ شرح البدایه ۱۲ ﮯ درمختار و شامی ۱۲ ﮯ شرح التنویر و شامی ۱۲ ﮯ شرح البدایه ۱۲

ده۔ او سپین په یوه روپۍ یوه نیمه توله کیږي۔ یو سړی سره دَ حاجت اصلي نه سوا پنځه روپۍ دي۔ او نیمه توله سره۔ کال پې تېر شه۔ نو زکوٰة پې واجب دے۔ ځکه چه نیمه توله سره دَ دېرشو روپو دي۔ او په دېرش روپۍ سپین زر پنځه څلویښت تولے کیږي۔ او دَ پنځو روپو اووُ نیم تولے۔ نو ټولے رسي۔ دوه پنځوس نیمو تولو ته۔ او دا نصاب دَ زکوٰة دے۔

البته که روپۍ سپین زر وغیره ور سره هیڅ نه وُو۔ خو صرف نیمه توله سره وُو۔ نو بیا واجب نه دے۔ ځکه چه نصاب ته نه رسي۔ دَ سرو نصاب اووه نیمے تولے دے۔

**مسئله**[1] :۔ مثلاً که سړي څخه صرف دېرش چاندي روپۍ وے۔ او دَ روپۍ زر دوه تولے خرڅیده۔ نو مونږ به دا حساب نه کوُ چه دَ دېرشو روپو زر شپېته تولے شو۔ زکوٰة پې واجب دے۔ زکوٰة په کښې واجب نه دے۔ ځکه چه روپۍ خودي دَ زرو۔ او چه دَ سړي څخه صرف چاندي وي۔ یا صرف سونا۔ نو اعتبار وزن له وي۔ نه قیمت له۔

**مسئله**[2] :۔ فرض که چه دَ یو سړي څخه څه زر دي سپین یا سره۔ او څه ور څخه مال دَ تجارت دے۔ او ځان ځان له ئې نصاب نه پوره کیږي۔ نو دَ مجموعه حساب به کیږي۔ یعنې دَ دغه مال قیمت که دَ زرو سره دَ زرو نصاب ته رسیده۔ نو زکوٰة پې واجب دے۔ کنې نو نه۔

**مسئله**[3] :۔ سره او سپین که خالص نه وُو۔ بلکه امیزش په کښې وُ۔ مثلاً په سپینو زرو کښې ملاوټ وُ۔ دَ کوټو نو غالب ته به کتے شي۔ که وزن په کښې دَ زرو زیات وُ۔ نو کوم حکم چه دَ زرو دے۔ هغه پې لګي۔ او که کوټ زیات وُ۔ نو وس به کورو که زر دومره وُو چه مقدار نصاب ته رسیده۔ یوازے یا سره دَ نور هغه مال نه چه زکوٰة په کښې راته نو زکوٰة واجب دے۔ دا رنګ که هغه راتجه سکه وه۔ او نصاب ته رسیده۔ هم زکوٰة واجب دے۔ او که دا خبرے په کښې نه وے۔ بیا ئې هغه حکم دے۔ کوم حکم چه په راتلونکے مسئله کښې بیانیږي۔

**مسئله**[4] :۔ دَ سرو او سپینو نه سوا نور چه څه دهاتونه دي۔ لکه تانبه

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار ۱۲ [3] درمختار وشامي ۱۲
[4] شرح التنویر ورد المحتار ۱۲

وسپنه - کوټ - شیکه - جست - پیتل وغیره - یا ددے لوخی - او دا رنګ نور سامان دَ هغې حکم دادے چه داکه دَ سوداګیرۍ او دَ خرڅ و فروخت دَ پاره وی - زکوٰة ئے باقاعده شته - یعنی دَ هغې قیمت که دَ سرو یا دَ سپینو مقدار نصاب ته رسیدلے وی - یوازے یا سره دَ نورو زکاتی مال نه - او کال پے واوختیده - لکه چه مینه بیان شویدی - نو زکوٰة ئے واجب دے - او که دَ سوداګیرۍ دَ پاره نه وُ - زکات ئے نشته -

دا رنګ دکور سامان لکه کتونه - کټاګی - بستونه - جامے - پتیلے - پلیټونه - پیالے لوخی - لرګی - وغیره وغیره هرڅه چه دی - دَ هغې زکوٰة نشته - او دا رنګ دَ ملغلرو او دَ جواهرو زکوٰة هم نشته - اګرکه بیش قیمت وی - البته که دا سامان دَ تجارت دَ پاره وُ - او قیمت ئے نصاب ته باقاعده رسیدلے وی - بیا ئے شته -

خلاصه خبره دا شوه چه دَ سرو او دَ سپینو او دَ نقد نه سِوا هرڅه سامان او اسباب چه وی - که هغه دَ سوداګیرۍ وُ - زکوٰة ئے شته کنی نو نه -

**مسئله** :- دَ سوداګرۍ دَ مال نه مراد دادے - چه دغه مال ئے په دے اراده اخستے وی چه تجارت به پے کومه - پس که څه شے ئے ځان له اخیستے وُ - یعنی دَ پاره دَ خپل ضرورت نو دَ هغې زکوٰة نشته - او که بیا ئے دَ هغې دَ خرڅ اراده وکړه - هم ئے زکوٰة نشته - البته پس دَ خرڅ نه به ئے په قیمت باندے زکوٰة راځی - که کال پے واوختید او نصاب ته رسیدلے یوازے یا سره دَ نورو زکوٰتی مال[۱] نه - څرنګ چه قاعده ده -

**مسئله** :- که چا ځپل کورونه په کرایه ورکول - نو دا په تجارت کښی داخل نه دی یعنی دَ دغه کورونو زکوٰة نشته - دارنګ که دیګونه - پتیلے وغیره ئے واخیستے - او په کرایه ئے چلول - دا هم سوداګری نه ده - دَ دغه لوخو زکوٰة پے نشته - او دارنګ حکم دے دلاورو موټرو -

غرض دادے چه په کرایه کوم شے چلوے - دَ هغې زکوٰة نه واجبیږی - البته کومه کرایه چه جمعه کی - او هغه حد دَ نصاب ته ورسی یوازے یا سره دَ نورو زکاتی مال نه نو دغه روپو زکوٰة ئے باقاعده شته -

**مسئله**[۲] :- که دَ چا بل نه قرضه وه - نو په قرضه کښی هم زکوٰة شته - خو حال چه دَ مقدار نصاب مودره وی - یا یوازے قرضه خو دَ نصاب نه کمه وی - لیکن

---

[۱] شرح الهدایه ۱۲ [۲] دَ نورو زکاتی مال نه مراد عام مال دے - چه دَ نقد بیو زکوٰة پکښی راځی منه ۱۲
[۳] قاضیخان ۱۲ [۴] شرح التنویر برهدالمحتار ۱۲

دے مالک وی دَ نورو زکاتی مال او مجموعه رسی مقدار نصاب ته - نو چه کال پرے تیرشی زکوٰة پرے واجب دے - خو دَ قرض په مسئله کښی تفصیل دے - ځکه چه دَ قرض درے قسمه دی - یو قوی دے - دویم متوسط - دریم ضعیف -

قوی هغه دے - چه سړی لګیدلے وی - بل له ئے روپئ یا سره یا سپین قرض ورکړی وی - یا ئے پے دَ تجارت څه شے خرڅ کړے وی - دَ هغے قیمت ئے ورته پورے وی - او متوسط هغه دے چه مثلاً سړی په بل باندے څه داسے شے خرڅ کړے وُ چه هغه دَ تجارت نه وُ - بلکه دَ ده خپل ضرورت وُ - مثلاً خپلے جامے ئے پے خرڅے کړے وے - یا دَ خپل کور سامان وغیره - او هغه روپئ ئے ورته پورے وے -

او ضعیف قرض هغه دے چه بدل وی دَ غیرمال - یعنے دَ مال عوض نه وی - بلکه دَ بل شی عوض وی - لکه دخاوند په ذمه دَ ښځے مهرباندے وُ - او هغه ډیره موده پس وصول شه - دارنګ دِیَت - او بدل دَ خلع وغیره - نو زکوٰة دَ قرض په دریواړو قسمونو کښی شته خو فوراً واجب نه دے - بلکه اول قسم قرض که دَ یو کال نه پس یا مثلاً دوه درے کاله پس په هیر وصول شه - نو دَ ټولو کلونو زکوٰة به ئے با قاعده علے الحساب ادا باسی - او که ټول یکمشت وصول نشه - نو کوم وقت چه ئے څلو یښت درهم شرعی وصول شی یعنے پنځمه حصه دَ نصاب نو دَ دے وصول شده زکوٰة به ادا باسی - یعنے دَ دے څلو یښتمه - نو په څلو یښت درهم کښی به یو درهم ورکی - او که دَ دے نه کم وصول شوے نو نه -

غرض دادے چه دَ هر څلو یښت په وصولئ سره به زکوٰة ادا باسی - او کوم وقت چه ئے زکوٰة ورکوی نو دَ ټولو کلونو به ئے با قاعده ورکوی -

او دَ دویم قسم قرض حکم دادے چه دَ هغے زکوٰة اداکول هله واجبیږی چه دوه سوه شرعی روپئ قبض کی - نو دَ هغے هر څو کاله چه تیر شوی وی - زکوٰة ئے واجب دے - خو زکوٰة اداکول ئے هله واجبیږی چه دومره مقدار قبض کی - پس دَ دے زکوٰة به ادا باسی دَ ټولو کلونو یعنے موافق دَ قاعدے سره -

او څینے عالمان وائی چه دَ دے قسم حکم هم په شان د دریم قسم دے - دَ دریم قسم حکم دادے چه په دے قرضه باندے دَ تیرو شوو کلونو زکوٰة نشته - خو کوم وقت چه وصول شی - او دَ دے نه پس پے کال تیر شی - هله به پے زکوٰة واجبیږی - البته که زکاتی مال ورسره نور هم وُ - او دَ هغے کال لا نه وُ ختم شوے چه دا قرض وصول شه - نو دَ دے دواړو کال به یو ګڼړے شی - لکه چه عامه قاعده ده -

**مسئله**:- دَ ضمار په مال کښې زکوٰة نشته- یعنې دَ سړي کوم مال چه غائب وي- او طمع ئې قطع شوې وي- په هغې کښې زکوٰة واجب نه دے- مثلاً مال ئې ورک شوې وُ- هیڅ پته ئې نه وه- بیائې څو کاله پس اوموندو- یا په دریاب کښې لوئیدلے وُ- ډیره موده پس ئې رااوویست- یائې روپئ وغیره چرته ښخې کړې وې- لیکن ځائې ئې بالکل هیر شه- اتفاله ورډیې- بیائې پوڅو کاله پس اوموندے وغیره وغیره- نو په دے ټولو صورتو نو کښې دَ دغه مال زکوٰة دَ تیرشوو کلونو واجب نه دے-

**مسئله**:- که قرض خواه دَ کال تیریدو نه پس وګڼیده- دغه قرضه ئې قرضداري نه معاف کړه- نو په قرض خواه باندے دَ دغه مال دَ تیرشوي کال زکوٰة نشته- یعنې اوغوړزیږ- لیکن که قرضدارے مالدار وُ نو هغه ته قرضه معاف کول به داسے ګڼړلے شي- لکه هلاک کول- نو په قرض خواه ئې زکوٰة شته- ځکه چه دَ زکوٰتي مال په هلاکولو سره دَ هغې واجب شده زکوٰة نه غورزیږي-

**مسئله**:- که سړي څخه دَ ضرورت نه زائد دوه پنځوس نیم تولے سپین زر وو- مثلاً او نور څه ورڅخه نه وُو- او کال پرې تیر شه- نو ټلو بخته حصه ئې په زکوٰة کښې ورکول واجب شو- لیس که ورئې نه که- او دویم کال پرې تیر شه- او مال ئې هم دغه موره وو- نو وس پې ددویم کال زکوٰة واجب نه دے- ځکه چه په ده باندے دَ اول کال زکوٰة څلو بخته حصه دَ دغه مال ورکول دَ خدائے پاک دَ طرف نه لازم دي او قرض- نو چه څلو بخته ئې لرے کړے شي- باقي دَ نصاب نه کم پاتے کیږي- او که دَ اول کال زکوٰة خو پې نه وُ- لیکن کفاره پې پاتے وه- یا نذر- یا صدقهٔ فطر یا اضحیه- نو دا مانع دَ زکوٰة نه دي- نو زکوٰة پې واجب دے-

| دَ زکوٰة اداکولو بیان |
|---|

**مسئله**:- زکوٰتي مال چه څومره وي- په زکوٰة کښې دَ هغې څلو بخته حصه ورکول واجب دي- یعنې که مالک وُ دَ نصاب- نو مثلاً په دوه سوه روپو کښې به پنځه روپئ ورکوي- په سلو کښې دوه نیمې- په څلو بخت کښې یوه

**مسئله**:- دکال په تیریدو سره دِ فوراً زکوٰة ورکي- که په اداکولو کښې ئې بلا عذره تاخیر راوست او دویم کال هم تیر شه- نو ګنهګار شه- تو به دِ اوباسي- او ورد دِ کي- او که دَ دویم کال زکوٰة پې هم واجب وُ- نو دَ دواړو کلونو دِ ورکي- غرض دا دے چه پاتے کوي دِ په ذمه نه-

---

له شرح التنویر ۱۲ ئه محیط و بحرالرائق ۱۲ ئه درمختار و شامي ۱۲ ئه ملتقی الابحر ۱۲ ئه شرح التنویر ۱۲

**مسئله** :- که مثلاً دَ چا سره دَ سپینو زرو دوه کالی وو۔ چه زکوٰة ئے شلور تولے کیده۔ او په بازار کښ شلور تولے سپین زر په دوه روپئ خرځیده۔ نو په زکوٰة کښ ئے دوه چاندی روپئ ورکول جائز نه دی۔ ځکه چه دَ دوؤ روپو وزن شلور تولے نه دے۔ اَو دَ سپینو په زکوٰة کښ چه سپین ورکوی نو اعتبار وزن له دے۔ قیمت له نه دے۔ هان که په دے صورت کښ ئے دَ دوؤ روپو پیسے ورکړے۔ یا پاکستانی روپئ وغیره۔ یا ئے دَ دوؤ روپو دَ قیمت کپړه ورکړه۔ یا بل داسے شے۔ یا ئے چاندی ورکړه شلور تولے۔ نو زکوٰة ئے اداکیږی۔ غرض دا دے چه دَ سرو او دَ سپینو زکوٰة چه دَ خپل جنسه ورکوی۔ وزن ته به گوری۔ او چه خلافِ جنس ورکوی نو قیمت ته۔

**مسئله** ۶۔ دَ زکوٰة اداکولو دَ پاره نیت ضروری دے۔ کوم وقت چه ئے فقیر له ورکوی۔ په زړه کښ دے اراده وکړی چه دا زکوٰة دے۔ که بے دَ نیت دَ زکوٰة نه ئے ورکه۔ نو نه اداکیږی۔ البته که فقیر له ئے دَ ورکولو په وقت کښ نیت دَ زکوٰة نه دَ کړے۔ او دغه روپئ لا فقیر نه وے لگولے۔ ورسره وے۔ نو وس هم نیت کولے شی۔ او که هغه لگولے وے نو وس نیت صحیح نه دے۔ زکوٰة به بیا اداکوی۔

او که دَ مال نه چا زکوٰة ویستنه روپئ ئے جدا کړے۔ چه دا زکوٰة دے۔ مستحق له به ئے ورکوم۔ بیا چه ئے فقیر له ورکولے۔ نیت ئے هیر شه۔ نو خیر دے۔ هغه مینځ نیت کافی دے۔

**مسئله** :- که زکوٰة ئے وایست۔ لیکن په خپل لاس ئے مستحقینو له ورنکه۔ بلکه زید له ئے ورکه۔ ورته ئے اوویل چه دا مستحقینو له ورکه نو دا جائز دی۔ که زید دَ ورکولو په وقت کښ نیت دَ زکوٰة ونکه هم اداکیږی۔

**مسئله** :- مثلاً زید وگلید بکر له ئے پنځه روپئ ورکړے چه دا ځما دَ طرف نه فقیر له په زکوٰة کښ ورکه۔ نو هغه واغستے کینږودے۔ لیکن بیا ئے فقیر له خاص هغه پنځه روپئ ورنکړے۔ بلکه خپلے نورے پنځه ئے ورکړے په دے نیت سره چه دَ زید هغه به ځما شی۔ نو زکوٰة اداشه۔ خو هله که دَ زید هغه روپئ ورسره موجودوی۔ لگولے ئے نه وے۔

**مسئله** :- که زید بکر له روپئ ورنکړے۔ خو وے وئیل چه ځما دَ طرفه پنځه روپئ زکوٰة ورکه۔ او بکر ورکه نو اداشه۔ بکر به دَ زید نه پنځه روپئ وصول کی۔ او که

ـله درمختار وردالمحتار ۱۲ ـله شرح الہدایه ۱۲ ـله عالمگیری ۱۲ ـله شرح التنویر ردالمحتار ۱۲ ـله ردالمحتار ۱۲

زيدٓ بکرٓ ته څه نه دی ويلی - خو بکر د خپلے اندازے د زيد د طرفه زکوٰة ورکړه - نو نه اداکيږی[۱] ځکه اول زيدے منظور کړی هم نه دے ادا شوے - او د بکر حق د زيد نه د دغه روپو اخستلو نشته -

**مسئله**[۲] :- که زيد وکيل بکر له لس روپئ ورکړے - چه دا څما د طرفه په زکوٰة کښی ورکړه - نو د بکر اختيار دے که خپل غريب رشته دار له ئے ورکوی - او که بل مستحق له - او بکر ئے په خپله نه شی آخستے - ليکن که زيد ورته ويلی وو - چه دا زکوٰة دے - هر څه چه ورسره کوے - ستا خوښه ده - هر چاله چه ئے ورکوے - بيا ئے بکر په خپله هم آخستے شی - بشرطيکه مستحق وی -

**مسئله**[۳] :- که مستحق له ئے زکوٰة په نيت د زکوٰة ورکړه - او په ظاهر کښی ئے ورله نوم د قرض کيخود - يا پيشکش يا انعام - نو زکوٰة ادا شوه - دا رنګ که هوښيار دو درهو لے د اختر د پيسو په نوم ورکه او نيت ئے د زکوٰة وُ - هم اداکيږی -

**مسئله**[۴] :- که څوک د نصاب مالک وُ - زکوٰة پے واجب وُ - خو لا کال نه وُ پوره شوے - مينه ئے زکوٰة ورکه نو هم اداکيږی - او که د يو څو کالونو زکوٰة ئے مخکښی ورکه دا هم جائز دی - ليکن که بيائے په يو کال کښی مال زيات شه - د زيات زکوٰة پے هم شته -

**مسئله**[۵] :- که سړے د نصاب مالک نه وُ - بلکه اميد ئے وُ - چه ما ته به ملاؤ شی او په دے اميد ئے زکوٰة ورکه نو نه اداکيږی - يعنے پس د دے نه که دے د نصاب مالک شه - او کال پے تير شه - د هغے زکوٰة به بيا ورکوی - مينځ نه دے ادا شوے - او که څوک مالک د نصاب وُ - مثلاً سل روپئ ور څخه د ضرورت نه زياتے موجود وے - خو لا کال ئے نه وُ پوره شوے - او د ده اميد وُ چه سل به چرته نورے او مومم - د دواړو سوو روپو زکوٰة ئے د کال نه مخکښی پيشکی ورکه نو دا جائز دی - ليکن که د کال پوره کيدو نه مينه ئے مال د نصاب نه کم شه - نو زکوٰة ئے معاف شه - يعنے څه چه ئے په نيت د زکوٰة ورکړی وُ - هغه ئے صدقه نافله وګرځيده - او دا رنګ حکم دے په تيره شوے مسئله کښی -

**مسئله** :- په زکوٰة - عشر - خراج - صدقهٔ فطر - نذر - کفاره کښی نيمت ورکول هم جائز دی - او د اضحيه په ورځو کښی د اضحيه په ځائے قيمت ورکول نه دی جائز

---

[۱] درمختار و شامی ۱۲ [۲] درمختار و شامی ۱۲ [۳] شرح البدايه و شرح التنوير ۱۲ [۴] شرح التنوير و شرح البدايه
[۵] شرح التنوير و رد المحتار ۱۲

او په زکوٰة وغیره کښې چه قیمت ورکوی - نو کوم وقت چه په وجوب راغلے دے - قیمت ده هغه وقت معتبر دے۔

او صاحبین وائی چه په وقت د ادا کولو کښې ئې چه څه قیمت دے - اعتبار هغې لره دے البته که د سائمه څاروُ په زکوٰة کښې قیمت ورکول غواړی - نو کوم وقت چه ادا کوی - د دغه وقت قیمت معتبر دے - صحیح خبره داده - چه په دے صورت کښې څوړنو د امامانو اختلاف نشته -

**مسئله** :- په قیمت لګولو کښې به د هغه ښار یا د هغه کلی اعتبار وی - چه د دغه زکاتی مال په کښې دے - او که مال په ځنګل کښې وُ - نو کوم ښار یا کلے چه ورته نزدے وی قیمت د هغې معتبر دے۔

**مسئله** :- فرض که چه د سړی سره دوه سوه روپئ وے - کال تیر شو نه پس د هغې نه چاسل روپئ غلا کړے - یائے ده خیراتی ورکړے - نو د باقی زکوٰة پرے شته - او د نورو نشته - هاں که هسے ئے لګولے وے - یائے هبه کړے وے - نو د هغې زکوٰة به هم ورکوی۔

**مسئله** :- که څوک د نصاب مالک وُ - کال پرے تیر شه - لیکن ده لا د هغې زکوٰة نه وُ ورکړے - چه هغه غلا کړے شه - یا په څه بله ذریعه هلاک شه - نو زکوٰة ئے علے الحساب معاف شه - او که په خپله ئے ولګاوُ - یائے په خپل اختیار هلاک که - نو څو مره زکوٰة چه پرے واجب شوے وُ - هغه به ادا کئ - معاف نه دے - او که چا د کال پوره کیدو نه پس خپل زکاتی مال ټول خیرات که - نو زکوٰة ئے او غورزیده۔

**مسئله** :- یو فقیر له د زکوٰة د مقدار نصاب موره ورکول مکروه دی - لیکن که ورله ئے ورکه نو ادا شه - او غوره داده چه یو فقیر له دو مره زکوٰة ورکی چه د دغه ورځ مناسب حاجت ئے پرے د سره شی - او که ټول زکوٰة یو فقیر له ورکوی هم جائزه ده - او که لږ لږ ورکوی ډیر وله نو هم جائزه ده - دا رنګه که د زکوٰة روپئ ئے جدا کړے او په یو ورځ ئے نه ورکوے - بلکه لږ لږ ئے په یو څو میاشتو کښې ادا کړے نو هم جائزه ده۔

**مسئله** :- که زید څخه د ضرورت نه زائد دوه سوه روپئ وے مثلاً - او په دغه روپو کال واوُختید - او دده پنځه روپئ بکر ته قرض وے - خیال ئے وکه - چه بکر

---

له شرح التنویر ورد المحتار ۱۲ ت درمختار ۱۲ ت شرح البدایه ۱۲ ت درمختار وشرح البدایه ۱۲ ت رد المحتار ۱۲

نقیر دے ۔ راشه دغه پنځه روپئ به ورته پرېږدم ۔ دَ دے دوه سوو زکوٰة به رم ادا شی ۔ نو په دے سره نه اداکیږی ۔ تملیک ضروری دے ۔ نو حیله ئے داده ۔ چه پنځه روپئ ورله نقد په زکوٰة کښ ورکی ۔ هغه به ئے قبض کی ۔ بیا دے تے وا خلی په خپله قرضه کښ ۔

**مسٔله:**۔ که چا دا خیال وکه چه یو فقیر به په خپل مکان یا دکان کښ ډیر کال پورے بلا کرایه اوسوم ۔ زکوٰة به رم په دے سره اداشی ۔ نو دا خیال غلط دے ۔ زکوٰة پے نه اداکیږی ۔

**مسٔله:**۔ که چا دا خیال وکه چه زکوٰة را باندے واجب دے ۔ راشه فقیران به چوډپے له راولم ۔ زکوٰة به رم پے اداشی ۔ نو دا هم غلطه ده ۔ زکوٰة پے نه اداکیږی ۔ البته که طعام تے فقیرانو له ورکه ۔ یعنے هغه ئے مالکان وګرځول ۔ یائے ورله مثلاً جامے وغیره واغستے ۔ ورئے کړے ۔ او هغه قابل وُو د قبض نو زکوٰة پے اداکیږی ۔

**مسٔله:**۔ که څوک پس دَ زکوٰة واجبیدلو نه مړ شه ۔ او ورکړے ئے نه وُو نو دَ هغه دَ ترکے نه به نه ورکیږی ۔ هاں که وصیت تے کړے وُ ۔ نو دَ مال دَ دریئ حصے نه به زکوٰة ورکړے شی ۔

او که زکوٰة دَ دریئ حصے نه زیات کیده ۔ نو زیات به تے نه ایستلے کیږی ۔ البته که میراث خوره پے راضی وو ۔ بیا به تے ورکړے شی ۔

**فایده:**۔ نفلی صدقه ورکول هغه وقت مستحب وی چه مال تے دَ خپل ضرورت او دَ بال بچ دَ ضرورت نه زائد وی ۔ کنی نو مکروه دی ۔ دارنګ خپل ټول مال خیراتی ورکول هم مکروه دی ۔ لیکن که په ځان تے دَ صبر او دَ توکل یقین وُ ۔ او اهل وعیال نه ئے هم دَ تکلیف اندیښه هم نه وه ۔ بیا خیر دے ۔ بلکه غوره ده ۔

مصارف دَ زکوٰة

**مسٔله:**۔ دَ زکوٰة مستحق مسکین دے ۔ یا فقیر ۔ مسکین هغه څوک دے ۔ چه دَ یوے ورځے دَ کنډارے لائق ورځه هم نه نوی ۔ او فقیر هغه څوک دے ۔ چه څه مال خو ورځه دی ۔ لیکن دَ ضرورت اصلی نه سوا ورځه نه دَ مقدارِ نصاب موره مال وی ۔ او نه دومره اسباب وغیره چه دَ هغے قیمت

---

لے شرح التنویر وشامی ۱۲ ۲ے شامی ۱۲ ۳ے در مختار ۱۲ ۴ے شامی ۱۲ ۵ے شرح التنویر ۱۲ ۶ے او دَ میراث خورو دَ تبرع خبره بله ده ۱۲ منه ۔

رسی مقدارنصاب ته -

**مسئله**[۱] :- څوک چه دَ نصاب مالک وی - دَ نقد یا دسرو سپینو وغیره - او زکوٰة پې واجب وی - نو دغه مالدار دے - زکوٰة اخستل وله نه دی جائز - او دَ چا څخه چه صرف د دومره قیمت څه سامان وی زائد دَ حاجت اصلی نه - اګرکه دغه دَ تجارت دَ پاره نه وی - دے هم په شریعت کښې مالدار ګڼلے شی - زکوٰة وله نه دے جائز - اګرکه په دے قسم مالدار باندے په خپله زکوٰة نشته -

**مسئله**[۲] :- که مثلاً دَ چا څخه صرف زر دوه زره روپئ نقد دَ ضرورت نه زائد موجود وے - نو رڅه نه وُ - لیکن دومره قرضه پې هم وه - یا قرضه - دده نه زیاته وه - نو ده له زکوٰة ورکیدے شی - اوکه قرضه پې دَدے نه کمه وه - نو وُ دے ګوری چه دَ قرضے اداکولو نه پس به څومره پاتے شی - که دَ نصاب زکوٰة موره پاتے کیدے - نو زکوٰة وله نه شی ورکیدے - اوکه کم پاتے کیدے نو ورکیدے شی -

**مسئله**[۳] :- که سړے دَکوره دولتمند وُ - لیکن وُ په سفر کښې - غلاتے وشوه خرچ ورڅخه پاتے نه شه - یا په بله څه وجه سره داسے نادار شه - چه دَ کوره پورے دَ رسیدو خرچ ورڅخه هم نه وُ - نو ده له زکوٰة اخستل جائز دی - په قدر دَ حاجت

**مسئله** :- دَ کور دَ استعمال سامان او دا رنګ جامے او دَ استعمال لوخی لرګی کوم چه اکثر په کار راځی - او کور او دَ خپل صنعت وحرفت اوزار - او دَ اهل دَ پاره دَ ضرورت کتابونه - دا ټول په حاجت اصلی کښې داخل وی - په دے سره سړے نه غنی کیږی - نو زکوٰة ورله ورکیدے شی -

البته صرف دَ زینت سامان او غټ غټ دیګونه - فرشونه او شامیانے وغیره یعنے دَ کوم څیزونو ضرورت چه په کلونو کښې یوځل دوه پیښیږی - که دَدے قیمت دَ نصاب مقدار ته رسیده - غنی والے پې راځی - بیا مصرف د زکوٰة نه دے - ځکه چه دا څیزونه په حاجت اصلی کښې داخل نه دی -

**مسئله**[۴] :- که دَ چا دوکانونه وُو - یا کورونه وُو په کرایه ئے چلول - او په دغے ئے ګذر اوقات کاوُ - لیکن دَ کوره دومره ګنړوو چه ګذاره ئے پې بنه نه کیده او بل څه زکاتی مال ورسره هم نه وُ نو زکوٰة اخستل ورله جائز دی - دَ زکوٰة مصرف دے -

---

[۱] عالمګیری ۱۲ [۲] هندیه ۱۲ [۳] هندیه - [۴] شامی ۱۲ [۵] ردالمحتار ۱۲

**مسئله[1]** :- کافر له زکوٰة نشي ورکیدے - صرف مسلمان له به ئے ورکوی - او نفلی صدقه که ذمی له ورکوی هم جائزه ده - او په صدقۂ فطر او نذر او کفاره کښې اختلاف دے - طرفین رو وائي چه جائز دے - خو مسلمان فقیر ته غوره دے -

**مسئله[2]** :- د فقیر سړي نابالغه عاقل ځوئ له زکوٰة ورکیدے شي مصرف دے - اګرکه مورے مالداره وی - او د مالدار سړي نابالغ ځوئ له زکوٰة نشي ورکیدے هاں! د مالدار سړي غریبې ښځې له او دارنګ د هغه بالغ غریب ځوئ له زکوٰة ورکیدے شي -

**مسئله[3]** :- په زکوٰة کښې دا ضروری ده چه څوک مستحق د هغے مالک وګرځی - نو د جمات - مسافرخانے - پُل وغیره وغیره په تعمیر کښې صرف کول - یا د میت په تجهیز و تکفین کښې لګول درست نه دی - زکوٰة پے نه ادا کیږی - ځکه چه تملیک د فقیر دا نشے - او که قطعی ئے په مذکوره کار کښې لګول غواړی - نو حیله ئے داده - چه زکوٰة ورکی فقیر له - هغه به ئے قبض کی - بیا به ئے هغه د جمات وغیره په تعمیر کښې یا د میت په تجهیز و تکفین کښې ولګوی - نو ثواب د دواړو وشنه - خو دومره خبره ده - چه فقیر ئے مالک شي - نو که د امر مخالفت کوی - او نه ئے ورکوی - حق ئے شته -

**مسئله[4]** :- خپل مزدور له - نوکر چاکر له زکوٰة ورکولے شي - چه مستحق وي لیکن په تنخواه کښې دے ورته نه حسابوی -

**مسئله[5]** :- خپل اصول او فروع له زکوٰة ورکول جائز نه دی - یعنے زکوٰة ایستونکے خپل زکوٰة خپل پلار - مور - نیکه نیاله د مور د پلار دے وی او که د پلار - یعنے د کوم نه چه دے پیدا شوے دے - هغوله او خپل اولاد - او د اولاد اولاد له - یعنے کوم چه د ده نه زیګیدلی دی - هغوئ له نه شي ورکولے - او ښځه خپل خاوند له - او خاوند خپلے ښځے له هم نه شي ورکولے - د دے نه علاوه نورو نسبیانو له ورکولے شي - کوم چه مستحق دی - لکه رور - خور - وراره - خورزه - تره - ماما - ترور - وغیره -

**مسئله[6]** :- میرے مور له - پلندر پلار له - او پرکټي او پرکټی نه - او بنږونه او رضاعی مور او پلار - او رضاعی ځوئ لور له زکوٰة ورکول جائز دی - او که خدائ نخواسته

---

[1] هندیه ۱۲ [2] درمختار ورد المحتار ۱۲ [3] فتاوی عالمګیری ۱۲ [4] درمختار ورد المحتار [5] درمختار ورد المحتار ۱۲ [6] هندیه ورد المحتار ۱۲ [7] هندیه و شامی ۱۲

دَجا خُوئ ؤ دَ ژنا - او هغه شرعاً معروف النسب نه ؤ - نو دے هغه له هم زکوٰة نه شی ورکولے -

**مسئله**[1] :- دَ یوے ښځے مهرخاوند نه پورے دے - په قدر دَ نصاب سره یا زیات له دے نه - او کوم وخت چه ئے داغوا اړی ورېئے کی - نو دے ښځے له زکوٰة جایز نه دے - مصرف دَ زکوٰة نه ده -

هاں! که خاوند ئے غریب ؤ - یا مالدار ؤ خو نه ئے ورکاؤ - نو بیا مصرف دَ زکوٰة ده - یعنے بل ورله زکوٰة ورکولے شی - خو هله که غریبه وی -

**مسئله**[2] :- اصل مذهب دا دے چه هاشمی له زکوٰة جایز نه دے - اګرکه ورکونکے هم هاشمی وی - البته دَ ځینې عالمانو اختلاف پکښې شته -

**فائده**[3] :- حضورِ دَ نبی علیه السلام سلسله نسب څلورے پیړے پورے داده :- محمدؐ بن عبد الله بن عبد المطلب بن هاشم بن عبد مناف - دَ عبد مناف صاحب څلور ځامن پاتے شوی ؤ - هاشم - مطلب - نوفل - عبد شمس - بیا هاشم صاحب هم څلور ځامن پریخوده - دَ دے نورو نسل منقطع شه - خو دَ عبد المطلب صاحب نسل وزیګیده - دَ هغه دولس ځامن وو - دَ دے په اولاد کښې چه څوک مسلمان دی او غریب - هغه له زکوٰة جایز دے - لیکن دَ حضرت عباس رض او دَ حضرت حارث رض اولاد له - او دارنګ دحضرت علی رض - حضرت جعفر رض - حضرت عقیل رض - ابناءِ ابی طالب اولاد له زکوٰة اخستل جائز نه دی - څرنګ چه نبی علیه السلام له جائز نه ؤ - په مذکوره مسئله کښې دَ هاشمین نه مراد دا حضرات دی - او څرنګ چه زکوٰة ورله جائز نه دے - دارنګ کومه صدقه چه په شریعت کښې واجبه ده - لکه صدقه فطر - کفاره - وغیره - دا ورله هم جائز نه دی - البته نفلی صدقه ورله جائزه ده - او نبی علیه السلام له دا هم نه وه جائزه - لیکن بعض متاخرینو عالمانو فتویٰ ورکړے ده - چه په دے زمانه کښې هاشمین له زکوٰة ورکیدے شی - ځکه چه پخوا به ورله دبیت المال نه وظائف مقرر وو - اوس نشته -

**مسئله**[4] :- که یوڅوک له ئے زکوٰة ورکه یا داسے نابالغ هلک له چه هغه اهل دَ قبض کولو نه ؤ - نو نه اداکیږی - البته دَ دی دَ پاره ددی ولی له یعنے واکدار له ورکیدے شی -

**مسئله**[5] :- غوره داده چه په زکوٰة کښې او دارنګ په صدقات وخیرات کښې

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] هندیه ۱۲ [3] درمختار وشامی ۱۲ [4] درمختار وشامی ۱۲ [5] هندیه ۱۲

مینه دخپلو مستحقینو رشته دارانو خیال وساتلے شی - او په دوی کښې هم افضل دا ترتیب دے - مینه دور او خور - بیا د دوی اولاد - بیا تره او ترور - بیا د دوی اولاد - بیا ماما او خاله - بیا ئے اولاد - بیا نور قرابتداران -

**مسئله** :- د یو کلی نه بل کلی ته زکوٰة لیګل مکروه دی - هاں که خپل فقیر رشته دارانو ته ئے لیګه - یا د هغه ځائے مستحقین د دے ځائے د مستحقینو نه ډیر حاجتمند وو - یا غوره وو - لکه طالب د علم دین یا عالم - عابد - زاهد - وغیره بیا ښه ده - لیګلے شی -

**مسئله** :- که د چا متعلق ئے غالب ګمان وُ چه دے مستحق د زکوٰة دے - پس زکوٰة ئے وله ورکه - بیا معلومه شوه چه دے خو غنی دے - یا ئے ورله په تیرے کښې ورکړے وُ - بیا معلومه شوه چه دے خو ځان د اسے نسبی دے چه ځما زکوٰة پے نه کیږی - نو زکوٰة اداشه - دوباره اداکولو ته ضرورت نشته - البته که اغستونکی ته معلومه وه چه دا زکوٰة دے - ماله جائز نه دے - نو نه دِ اخلی - واپس دِ کړی -

| د سائمه څارو و زکوٰة | سائمه څاروی چه نصاب ته رسیدلی وی او کال پے واوړی

زکوٰة ئے واجب دے - د نصاب او د زکوٰة تفصیل به مخکښې راشی - او سائمه هغه څاروی دی چه د کال په اکثره حصه کښې به خپله څریکی - او په هغے اکتفا کوی - دا نه چه په کور کښې ورله وړی - او کیاه وغیره ورله دلته راوړے شی - که نیم کال ئے په خپله څر کاؤ - او نیم کال کور ورله وړو - واخه وغیره به ورله دلته راوړے کیده په قیمت سره یا بے قیمته نو سائمه نه دی -

بله خبره دا ضروری ده چه د دغه څارو و ساتل د ډیرو په غرض وی یا د نسل پیدا کیدلو - یا د څربیدلو - نو که دا غرض په کښې یُو هم نه وُ - بلکه د بار بردارئ یا د سورلئ په غرض ئے ساتل - یا په دے غرض چه دا به څاربه شی حلالوم به ئے - غوښه به ئے خورم نو دا هم سوائم نه دی - زکوٰة په کښې نشته - او که د تجارت د پاره وُو - نو هم سوائم نه دی - بیا پکښې زکوٰة د تجارت دے - بس - او اوښ اوښه - سنړ میخه غوائی غوا - ګډ ګډه - پیسه بیزه - دا ټول په سوائم کښې داخل دی - خو هله که مذکوره شرائط د سائمے پکښې ټول موجود وی - او کوم څاروی چه وحشی دی - لکه اوسئ - باره سنګے - سارانے ګډو وغیره - هغه سوائم نه دی - البته که چا د تجارت د پاره

---

ؔ شامی وهندیه ۱۲ ؔ هدایه ۱۲ ؔ درمختار وشامی ۱۲

اغستی وو- نوزکوٰة دَ تجارت به پکښې راځي- لکه چه عامه قاعده ده- اوکوم څاروے چه
دَ کورني اوساراني نه پیدا شوے وي- هغه تابع دَ مورد ے- مثلاً دَاوسې او دَ کورنئ
بېزے نه بچے پیدا شه- نو هغه به دَ بېزے په حکم کښې وي- یا دَ غوا او دَ بیل کاؤنه بچے
پیدا شه- نو هغه به دَ غوا په حکم کښې وي-

مسئله[1] :- که څاروي لوئے نه وو- بلکه تول بچي بچي وو- مثلاً دَ یوسړي ټخه سائمه
څاروي وو- نصاب ته رسیدل- شپږ میاشتے پس ئے بچي راوړل- بیا ټول مړه شول-
خو بچي ئے پاتے شو- کال پے راوختلو- نو په دے بچوکښې زکوٰة نشته- البته که یو
څاروے ورسره لوئے هم پاتے شوے وُ- بیا به په کښې زکوٰة راځي- نو په زکوٰة کښې به هم دا
لوئے ورکولے شي- که چرے دے اعلیٰ نه وُ- اوکه بالفرض دا لوئ دَ کال پوره
کیدو نه پس مړ شه- زکوٰة به او غورزیږي-

مسئله[2] :- دَ وقف په سائمه څارووکښې زکوٰة نشته-

مسئله[3] :- که چا څاروي دَ تجارت په نیت اغستي وو- بیا ئے هغه دَ کال
پوره کیدو نه مخکښې سوائم وګرځول- نو دَ تجارت هغه کال نه دے معتبر- بلکه دَ
کوم نه ئے چه دا څاروي سائمه کړي دي- دَ دے کال به دَ هغے نه شروع کیږي-
دارنګ که مینه ورځخه سائمه څاروي وُو- اوکال ئے لا نه وُ پوره شوے چه هغه
ئے په نیت دَ تجارت خرڅ کړه- یه بدل کښې ئے نور څاروي یا سامان یا نقد واغست
او نور نصاب ورځخه نه وُ- نو دَ تجارت کال به دَ دس نه نوے شروع کیږي- دسوائم
هغه کال نه دے معتبر- وجه داده چه دَ تجارت زکوٰة او دَ سوائم زکوٰة دواړه مختلف دَي
نوکال به ئے یو نه شي ګڼړلے- په خلاف دَ سامانِ تجارت نه- ځکه چه دَ تجارت څه شے
که ئے خرڅ که- بل څه شے ئے پے دَ تجارت واخست- نو ددے دواړو کال به یو ګڼړلے
شي- ځکه چه زکوٰة ئے مختلف نه دے- بلکه یو شان دي-

مسئله[4] :- که سائمه څاروي ورځخه دَ نصاب موره وو- خو کال ئے لا نه وُ
پوره شوے چه نور څاروي ورته دارنګ حاصل شو- نو دا به دَ هغے سره یو ځائے کړے
شي- یعنے دَ هغے کال چه پوره کیږي ددے به ورسره هم پوره وګڼړلے شي- خو
هله که چرے جنس ئے یو وُ- کنې نو نه- مثلاً ځکښې ورځخه لس سائمه اوښان
وُو- اوس ورته پنځه بېزے حاصل شوے- نو دا به دَ اوښانو سره نه یو ځائے کیږي

---

[1] درمختار وشامی ۱۲ [2] شرح التنویر ۱۲ [3] درمختار وردالمحتار ۱۲ [4] شرح التنویر ردالمحتار ۱۲

اوکه پخته اوښان ورنه حاصل شو- نو چونکه جنس ئې یو دے- دا به دَ هغې سره تل کړے شی- ځکه چه تل کیږی یو نقد دبل سره- او تل کیږی سامان دَ تجارت د نقد سره- ځکه چه جنس ئې یو دے په اعتبار د قیمت-

مسئله[۱]:- سائمه اسونه که نرا وماده ګډ وی وو- او کال پرے واوختیږ- نو زکوٰة په کښې واجب دے- خو دومره خبره ده- چه دا اسونه که دَ عرب وی نو دَ مالک اختیار دے که فی اَس یو دینار ورکوی- او که دَ ټولو قیمت لګولونه پس د مجموعه قیمت څلویښتمه ورکوی- دواړه طریقے جائز دی- او که دَ غیر عرب وی نو صرف دویمه طریقه ده- او که صرف نر وُو یا صرف ماده- نو په دے کښې دوه روایته دی- یو دا دے چه زکوٰة په کښې نشته- بل دا دے چه په نر اسونو کښې نشته- او په ماده اسپو کښې شته-

او که اسونه دَ جهاد فی سبیل الله دَ پاره ګرځولی شوی وُو- په وقف یا وصیّت سره- نو بیا په کښې زکوٰة نشته- نر وی او که ماده- خو دا ټول بیان دَ امام اعظم صاحبؒ په قول مبنی دے- ورنه صاحبین رح وائی چه په سائمه اسونو کښې زکوٰة نشته- او څینې عالمانو دے قول له ترجیح ورکړے- او څینې دَ امام صاحب رح قول له- او صحیح خبره دا ده- چه دَ امام صاحبؒ په نزد دَ اسونو دَ پاره څه خاص نصاب نشته-

مسئله[۲]:- که اَسونه دَ باربرداری دپاره وُو- یا دَ سورلئ دَپاره- نو زکوٰة په کښې نشته- او که دَ تجارت دَ پاره وو- نو دَ تجارت زکوٰة په کښې باقاعده شته- او دا ټنګ حکم دے دَ خرا و دَ قچرو

مسئله[۳]:- دَ سائمه څاروو په زکوٰة کښې چه کوم عمر څاروے واجب شوے وی- محصّل به هغه دَ متوسطے درجے اخلی- یعنے نه ادنیٰ- نه اعلیٰ- بلکه په اعلیٰ کښې ادنیٰ- او په ادنیٰ کښې اعلیٰ- او که ټول اعلیٰ وُو- نو اعلیٰ- او که مثلاً دَ څلورو متوسطو بیزو په ځائے درے غټے څربے بیزے ورکړے شوے نو دا هم جائز دی- دا ټنګ دکوم خاص عمر څاروے چه واجب شوے وُو- که مثلاً زکوٰة وصولونکی هغه ونه مونده- د څاروو خاوند وله دَ هغې په ځائے دکم عمر څاروے ورکاوُ دا هم جائز دی- خو عوضه به لیسے دَ زیاتی قیمت هم

---

۱؎ درمختار وشامی ۱۲ ۲؎ شرح التنویر ۱۲ ۳؎ درمختار ورد المحتار وهدایه ۱۲

ورکوی۔ دارنگه که دَ هغې نه ئې اعلیٰ ورکه۔ نوهم جائز دی۔ نو دَ زکوٰة اخستونکی نه به دَ هغې په حساب دا زائد قیمت وصول کی۔

دَ اوښانو نصاب | که اوښان کم نه کم پنځه وَو۔ زکوٰة په کښې شته۔ اوکه دَ دے نه کم وو۔ نو نه۔ په پنځو کښې دَ نهه پورے یوه بیزه ورکول فرض دی۔ او په لسو کښې د څوارلس[۱] پورے دوه بیزے۔ په پنځلسو کښې دَ نولسو پورے درے بیزے۔ په شلو کښې دَ څلیریشت پورے څلور بیزے ورکول فرض دی۔ او په پنځیشت اوښانو کښې دَ پنځه دیرش پورے یو بنت مخاض۔ یعنې دَ اوښې هغه ماده بچے چه دویم کال ئې شروع شوے وی۔ او په شپږ دیرش کښې دَ پنځه څلو یښت پورے یو بنتِ لبون۔ یعنې دَ دریم کال یوه اوښه۔ او په شپږ څلو یښت کښې دَ شپیتو پورے یوه حِقّه۔ یعنې یوه اوښه دَ څلورم کال۔ او په یو شپیته کښې دَ پنځه اویا پورے یوه جذعه یعنې دَ پنځم کال یوه اوښه۔ او په شپږ اویا کښې دَ اتیالس پورے دوه بنتِ لبون یعنې دوه اوښے د دریم کال۔ او په یو اتیالس کښې دَ شپږ شلو پورے دوه حِقے یعنې دوه اوښے دَ څلورم څلورم کال۔

دَ شپږ شلو نه پس بیا نوے حساب دَ سره شروع کیږی۔ یعنې دَ دے نه که څلور زیاتے وے نو په هغې کښې څه نشته۔ خو صرف هغه دوه حِقے دی۔ اوکه پنځه زیاتے شوے یعنې یوسل پنځه ویشت وے نو دوه حِقے او یوه بیزه۔ دَ یوسل یوکم دیرش پورے دغه حکم دے۔ او په شپږ یمو شلو کښې دَ یوسل څلور دیرش پورے دوه حِقے او دوه بیزے۔ او په یوسل پنځه دیرش کښې دَ یوکم اوو شلو پورے دوه حِقے او درے بیزے۔ او په اوو شلو کښې دَ یوسل څلور څلو یښت پورے دوه حِقے او څلور بیزے۔ او چه پنځه دَ بره اوو شلے شی۔ په هغې کښې دوه حِقے او یوه بنت مخاض۔ یعنې دوه اوښے دَ څلورم څلورم کال۔ او یوه اوښه د دویم کال۔ دارنگه حکم دے دَ یوسل یوکم پنځوس پورے۔ او په اوو نیم شلو کښې درے حِقے دی۔ او د دے نه چه زیات شی حساب به بیا دَ سره کیږی۔ یعنې درے حِقے خو به په ځائے وی۔ باقی دَ اوو نیمو شلو نه زیاتی ته به ګورو۔ نو د څلیریشت پورے هر څومره چه پرے زیاتے شوے۔ دَ هغې په هر پنځو کښې به یوه بیزه راځی۔ اوکه زیات واله پنځیشت ته ورسیده۔ نو یوه بنت مخاض۔ اوکه شپږ دیرش ته ورسیده۔ نو یوه بنتِ لبون۔ اوکه شپږ څلو یښت ته ورسیده نو یوه بله حِقه

---

[۱] بحر رایق وشرح البدایه ودر مختار ۱۲

یعنې مجموعه که څلور کم دوه سوه وي۔ نو څلور حقې۔ او داڼګ حکم دے د دوؤ سوؤ پورې۔ او که اوښان دَدې نه هم ډیر وؤ۔ نو آخوا به همیشه حساب په هغه طریقه کوؤ۔ کومه طریقه چه دَ یو نیم سل نه پس روانه شوې وه۔ لیس۔

**مسئله**:۔ دَ اوښانو زکوٰة که دَ اوښ دَ جنسه ورکوي۔ نو ماده به ورکوي یعنې اوښه۔ البته که نر ورسره په قیمت کښې برابر وؤ۔ بیا نر هم جائز دے۔

**مسئله**:۔ کوم کوم ځائے چه بیزه واجبه شوې، خوښه دَ زکوٰة ورکونکي ده۔ که نر ورکوي او که ماده۔ خو چه د کال نه کم نه وي۔

**فائده**:۔ دَ سوائیم په نصاب کښې دَ دوؤ دوؤ خاصو نصابونو په مینځ کښې چه څه زیاتے دے۔ هغه دَ مفتیٰ به قول په بنا باندے عفوه دے۔ زکوٰة ئے نشته۔

| دغواو دَ میخو نصاب |
|---|

غواوې او که میخې۔ دَ دیرش نه په کم کښې زکوٰة نشته۔ برابره خبره ده چه نروي او که ماده۔ او که کم نه کم دیرش وے۔ نو زکوٰة ئے فرض دے۔ که غواوے نو په دیرش کښې به یوه سخئ یا یو سخے ورکوي دَ پوره یو کال۔ او که میښې دے نو دَ یو کال کټه یا کټئ۔ داڼګ حکم دے دَ یو کم څلویښت پورے۔ او په څلویښت کښې دَ یو کم شپیتو پورے یو بچے دَ دوؤ کالو۔ او که پوره شپیته وے نو دوه بچي دَ کال کال۔ او که دَ شپیتو نه زیات وے۔ قاعده ئے داده چه دَ مجموعه په هر دیرش کښې به دَ یو کال یو بچے راځئ۔ او په هر څلویښت کښې به یو بچے دَ دوه کلنے۔ مثلاً که اویا وے۔ نو یو نصاب په کښې دَ دیرش دے۔ بل د څلویښت نو دوه بچي به پکښې راځئ۔ یوٴ یو کلنے۔ بل دوه کلنے۔ او که اتیا وے۔ نو دوه نصابه دي دَ څلویښت۔ نو دوه بچي به راځئ۔ دَ دوؤ دوؤ کالو۔ او که اتیا لس وے نو درے بچي د کال کال۔ ځکه چه په اتیا لس کښې درے نصابه دي۔ دَ دیرش۔ او که سل وے۔ نو دوه بچي د کال کال او یو دوه کلنے۔ ځکه چه په سلو کښې درے نصابه وي۔ دوه دَ دیرش یو د څلویښت

او په کوم صورت کښې چه دوه مختلف نصابه معتبریدے شي۔ په هغې کښې خوښه دَ ورکوونکي ده۔ په هر جوړ چه ئے حسابوي۔

مثلاً یو سل شپږ شلے وے۔ نو په دے کښې څلور نصابه دَ دیرش هم معتبریدے

ے شرح التنویر ۱۲ ے درمختار وشرح البدایه ۱۲ ے درمختار ورد المحتار ۱۲ ے چه دوه کاله ئے پوره شوي وي

شي ۔ نو څلور بچي به ورکوي ۔ دکال کال ۔ او درې نصابه دَ څلو یښت هم معتبرېږي شي نو درې بچي به ورکوي دوه کلني ۔ اوکه نوې دو لس شپېته وي ۔ نو اته بچي دکال کال ۔ یا شپږ بچي دَ دوو دوو کالو ۔

**مسئله**[1]:۔ غوا او مېښې دواړه یو قسم ګڼړلې شي ۔ نصاب ئې هم یو دے ۔ اوکه څه غواوې او څه مېښې او نصاب دَ دواړو په یو ځائې کولو سره پوره کیده ۔ نو یو ځائې به ئې حسابوو ۔ مثلاً دَ یو سړي څخه پنځلس غواوې او پنځلس مېښې ۔ نو دېرش نصاب به پوره وګڼړلې شي ۔ لیکن په زکوٰة کښې به هغه قسم څاروې ورکوي ۔ چه کوم قسم زیات وي ۔ یعنې که غوا زیاتې وې ۔ دَ غوا دَ جنسه به ورکوي ۔ اوکه مېښې زیاتې وې نو دَ مېښې دَ جنسه ۔ اوکه دواړه برابر وې ۔ نو دَ ورکونکي خوښه ده ۔ که په اعلیٰ کښې ادنیٰ ورکوي ۔ اوکه په ادنیٰ کښې اعلیٰ ۔ یعنې په اعلیٰ قسم کښې چه کوم څاروې دکم قیمت وي هغه دِ ورکړي ۔ یا په ادنیٰ قسم کښې چه کوم دَ زیات قیمت وي ۔ هغه

**دَ بېزو او دَ ګډو نصاب**

بېزې[2] وي اوکه ګډې ۔ نروي اوکه ماده ۔ دَ څلویښت نه په کم کښې زکوٰة نشته ۔ او په څلویښت کښې یوه بېزه ده ۔ دارنګ دَ شپږ شلو پورې ۔ اوکه دَ شپږ شلونه یوه زیاته شوه ۔ نو دوه دي ۔ دارنګ دَ دوو سوو پورې بیا یو دَ پاسه په دوه سوه کښې دَ یو کم څلورسوه پورې درې دي ۔ او په څلور سوه کښې څلور دي ۔ دَدې نه پس په هر سلو کښې یوه ده ۔ یعنې تر دې که پنځه سوه وې ۔ نو پنځه ۔ اوکه شپږ سوه وې نو شپږ ۔ دارنګ دَ آخره پورې په هر سل کښې یوه ۔ او کوم زیاتې چه دَ دوو نصابونو په مینځ کښې دې ۔ هغه معاف دې ۔

**مسئله**[3]:۔ دَ بېزو او دَ ګډو حکم یو دے ۔ برابره خبره ده چه ګډې ایړې وي اوکه لوړې نو که شل بېزې وې او شل ګډې ۔ پس زکوٰة واجب دے ۔ او که څلویښت بېزې وې او څلویښت ګډې ۔ هم به یو نصاب ګڼړلې شي ۔ دوه نصابه به ورته نه وائي ۔ نو زکوٰة به پکښې یو راځي ۔ خو دومره خبره ده ۔ چه کوم قسم زیات وي ۔ په زکوٰة کښې به هغه قسم ورکوي ۔ اوکه دواړه برابر وو نو په اعلیٰ کښې ادنیٰ او په ادنیٰ کښې اعلیٰ ۔ لکه چه تېر شوي دي ۔

**مسئله**:۔ ګډه او بېزه چه په زکوٰة کښې ورکوي ۔ نو دَ نر او ماده قید پکښې نشته ۔ خو دَ یو کال نه دے کم نه وي ۔

---

[1] درمختار و ردالمحتار وهدایه ۱۲ [2] درمختار و شامي وهدایه ۱۲ [3] المغتنم في زكوٰة الغنم ۱۲ [4] بحر رائق ۱۲

دَعشر بیان | په یوه[1] علاقه کښې کافران آباد وو. د هغه علاقې زمکې دَهغوئ په قبضه کښې وې. مسلمانانو پې حمله وکړه. دغه ځائے ئے فتح که. زمکے ئے تے واخستے بادشاهِ اسلام ولګیدې. هغه زمکے ئے په اسلامی فوځ تقسیم کړے. یا په نورو مسلمانانو. نو دَدغه مفتوحه علاقې زمکو ته په شریعت کښې عشری وئیلے شی. دارنګ که دَ یو ځائے کافرانو ټولو په خپله رضا اسلام راوړو. مسلمانانو نه ورسره د غزا کولو ضرورت پیښ نه شه. نو دَدغه ځائے زمکوته عشری وئیلے شی. او ارض عرب ټوله عشری ده.

مسئله[2] :- که چاته د پلار نیکه نه زمکه دغه شان عشری رارسیدلے وه. یا ئے مثلاً په بیعه وغیره اخستے وه. دَ یو داسے مسلمان نه. چه هغه ته دغه شان عشری رارسیدلے وه. نو ددغه زمکے په پیداوار کښې به عشر وی. او که عشری زمکه چا کافر په بیعه واخسته. نو هغه خراجی ګرځی. عشری نه پاتے کیږی. او که مسلمان بیا مالک شه دَدغه زمکے په ذریعه د بیعے وغیره. نو وسهم عشری نه ګرځی. بلکه خراجی ده.

مسئله[3] :- که عشری زمکه بارانی وه. یا وه خوآبی. لیکن اوبه ئے دَ ویالے وے یا د نهر وغیره. نو ددغه زمکے په پیداوار کښې عشر دے. یعنی لسمه حصه دَحاصل. او که اوبه ئے دارهټ وے. یا به ئے په بوکو راایستلے او دغه زمکه به ئے پے اوبه کوله. نو دَ هغے په پیداوار کښې نصف عشر دے. یعنی شلمه حصه دَحاصل ده. او دارنګ حکم د باغ هم دے. غرض دادے چه دَعشری زمکے پیداوار لګ وی او که ډیر. مذکوره زکوٰة به په کښې ضرور ورکوی.

مسئله[4] :- په مذکوره زمکه کښې ئے هرڅه چه کرلی یا ئال کړی وی. دَ هغے په پیداوار کښې زکوٰة با قاعده شته. برابره خبره ده. چه دانے وی او که شولے یا سبزی ترکاری میوے وغیره.

مسئله[5] :- که دَ چا په کور کښې میوه داره ونه وه. یا سبزی یا نورے څه بوټي لګولی وو. نو په هغے کښې عشر وغیره نشته.

مسئله[6] :- که په عشری زمکه کښې یا په غره کښې یا په ځنګل کښې ئے شهد وایست نو په هغے کښې هم عشر شته

---

[1] درالمنتقیٰ وشرح التنویر۱۲ [2] درمختار۱۲ [3] شرح التنویر۱۲ [4] عالمگیری ۱۲ [5] درمختار ورد المحتار۱۲ [6] درمختار۱۲

**مسئله** :- عشریه چاړے۔ یعنے دزمکے په مالک دے اوکه د پیداوار په خاوند په دے کښې حقونځ د اماما نو رح او عالمانو اختلاف شته۔ لیکن آسانه خبره داده۔ چه حاصل ئے د چاوی۔ په هغه دے۔ یعنے که زمکه ئے په برخه ورکړے وه۔ مثلاً په دوه درے۔ یا په درے څلور وغیره۔ نو په مالک او په مزارع په دواړو دے۔ د خپلے خپلے حصے نه به ورکوی۔ اوکه زمکه ئے اجاره ورکړے وه۔ برابره خبره ده چه په نقدو وی اوکه په دانو۔ نو عشرئے په کسان دے۔

**مسئله** :- قرض اوورپوکوالے اولیونتوب مانع د عشرنه دی۔ یعنے د پیداوار خاوند که مقروض وُ۔ نودانه ده۔ چه کوننِ د قرض په وجه ورنه عشر معاف دے عشر به باقاعده ورکوی۔ دارنګ که د پیداوار خاوند نابالغ وُ۔ یالیونے وُ۔ نو هم پے عشر باقاعده شته۔

**مسئله** :- که عشری زمکه ئے توربران وه۔ یادرځنه وه په اجاره یاپه عاریت او لیغ نصل وُکه۔ عشرتے وه اوویست۔ اوهغه باقی دانے ئے په نیت د تجارت کیخودے او نصاب ورځنه پوره کیده۔ اوکال پے واوختیده۔ نو د تجارت زکوٰة پے نشته۔ کوم عشرچه تے ده ورکړے دے۔ بس هغه کافی دے۔ اوکه دانے ئے د بل چانه په بیعه اغیستے وے د پاره د تجارت نو په دے صورت کښې پے زکوٰة د تجارت شته۔

**صدقه فطربیان**

په چا باندے چه زکوٰة واجب دی یا زکوٰة خو واجب نه وی۔ لیکن دے د خپل اود خپل بال بچ د حاجت اصلی نه زایئد د دومره سامان وغیره مالک وی چه د هغے قیمت رسی د نصاب زکوٰة مقدارته۔ برابره خبره ده چه کال پے تیر شوے وی۔ اوکه نه۔ او د تجارت د پاره وی۔ اوکه نه۔ په هرحال په داسے سړی باندِ واجب دی۔ چه د خپل طرفه اود خپل نابالغ بچو د طرفه۔ کوم چه غریب وی۔ صدقه ئے فطر اداکی۔

**مسئله** :- که مثلاً د چا دوه کورونه وو۔ په یو کښې په خپله اوسیده۔ بل ئے په کرایه ورکړے وُ۔ یا خالی پروت وو۔ نو دا دوئیم کور د ضرورت اصلی نه زیات دے لیس که چرے د دے قیمت د نصاب زکوٰة د مقدار دومره وی۔ نو صدقهٔ فطر واجب ده او داسے سړی له زکوٰة اوفطره اغستل هم جایئز نه دی۔ البته که گذاره ئے په دے وی

---

له شرح التنویر ۱۲ ته درمختار وشامی ۱۲ ته درمختار وشامی ۱۲ ته خانیه ۱۲ ۵ه رد المحتار ۱۲

بیا به دا هم په ضروری اسباب کښې داخل وګڼلے شی۔ صدقهٔ فطر به پے واجب
نه وی۔ او زکوٰة و فطره اغستل به وله جائز وی که غریب وُ۔

**مسئله** [1]:- په کوم نصاب سره چه صدقهٔ فطر راځی۔ که هغه دَ سړی څخه موجود
وُ۔ لیکن دومره یا دَ دے نه زیاته قرضه پے هم وه۔ نو صدقهٔ فطر پے واجب نه ده۔
او که قرضه پے دَ هغے نه کمه وه۔ نو که دَ قرضے مجرا کولو نه پس ورسره هم زائد مال
اسباب پاتے کیده۔ او دَ هغے قیمت مقدار نصاب ته رسیده۔ نو فطره پے واجب ده
کنی نو نه۔

**مسئله** [2]:- دَ خپل موربلار او بیوی او بالغ ځامنو لونړو وغیره دَ طرف نه
صدقهٔ فطر ادا کول واجب نه دی۔ برابره خبره ده چه دی په خپله فقیر وی۔ او که
مالدار۔ او دَ ده په تربیت کښې وسی۔ او که نه۔ هاں که دوئ مالدار وی۔ نو بخپله
پے صدقهٔ فطر ادا کول واجب دی۔

**مسئله** [3]:- کوم بالغ ځوئ چه لیونے وی او فقیر وی۔ دَ هغه په پلار که صدقه
فطر واجب وی۔ نو دَ ده دَ طرفه پے هم واجبه ده۔ دارنګ پلار که لیونے وُ۔ او غریب
وُ۔ نو دَ هغه په ځوئ که صدقهٔ فطر واجب وی۔ دَ ده دَ طرفه پے هم واجب ده۔

**مسئله** [4]:- که نابالغ بچے په خپله غنی وُ۔ مثلاً څوک مورث ئے مړشوے وُ۔ دَ
هغه مال ورته پاتے شوے وُ۔ نو صدقه فطر پے واجب ده۔ دارنګ په غنی لیونی باندے
هم واجب ده۔ نو دَ دوئ ولی له پکار دی چه دَ دوئ دَ مال نه ادا کی۔ که ادائے نکړه
نو په بچی باندے به پس دَ بلوغ نه او په لیونی باندے به پس دَ ښه کیدلو نه دَ غه فطره
ورکول واجب وی۔

**مسئله** [5]:- په بنځه چه صدقهٔ فطر واجب وی۔ نو صرف دَ خپل طرفه ادا کول پے
واجب دی۔ دَ وړوکو او دَ نورو رشته دارانو دَ طرفه پے فطره ادا کول واجب نه دی۔

**مسئله** [6]:- که جینئ نابالغه وه۔ او غریبه۔ لیکن دَ خدمت کولو قابله وه۔ او دَ خاوند
کره لیګلے شوے وه۔ نو په هغے خو خود صدقهٔ فطر نشته۔ او دَ هغے په پلار او په خاوند
باندے هم دَ هغے دَ طرف نه صدقهٔ فطر ورکول واجب نه دی۔

**مسئله** [7]:- دَ رمضان المبارک دَ روژو په نه نیو سره صدقهٔ فطر نه غورځیږی

---

[1] فتاوی هندیه ۱۲ [2] در مختار و عالمگیری ۱۲ [3] در مختار و رد المحتار ۱۲ [4] در مختار و شامی ۱۲
[5] رد المحتار ۱۲ [6] عالمگیری و در مختار و شامی ۱۲ [7] در مختار و رد المحتار ۱۲

پس که د سفر یا د مرض یا د زوړوالی وغیره په وجه روژے ونه نیوے شوے۔ یا ئے خوا مخواسته بلا عذره ونه نیولے۔ نو هم پے صدقهٔ فطر واجب ده۔ که غریب نه وی۔

**مسئله[۱]:۔** که صدقهٔ فطر پے واجب وه۔ او ادائے نه کړه۔ بیائے مال هلاک شه۔ ختم شه۔ نو هغه صدقهٔ فطرے لا هغه شان په ذمه پرته ده۔ په خلاف د زکوٰة نه۔ که زکوٰة اداکول پے واجب شوی وو۔ لیکن لا اداکړے ئے نه وُ۔ چه مال هلاک شه۔ نو د هغے په حساب سره زکوٰة هم غورزیږی۔ لکه چه مخکښ بیان شوی دی۔

**مسئله[۲]:۔** د واړه اختر په ورځ د صبح صادق ختو سره صدقهٔ فطر واجبیږی نو که د اختر په شپه د صبح صادق نه مخکښ څوک مړ شه۔ صدقهٔ فطرے نشته۔ د هغه د مال نه به نه اداکیږی۔ او که د اختر په ورځ د صبح صادق ختو نه بعد څوک کافر مسلمان شه۔ یا فقیر صاحب نصاب شه۔ یا بچے پیدا شه۔ نو په دوئ سرسایه نشته۔ او که د صبح صادق ختو نه مبینه شوے وی۔ بیا پے شته۔ نو په دے صورت کښ به د بچی پلار څه رنګ چه خپله سرسایه ورکوی۔ د دغه نو زائید بچی سرسایه به هم ورکوی۔

**مسئله[۳]:۔** غوره داده چه د اختر په ورځ د اختر مانځه له د تلو نه مینه سرسایه اداکړے شی۔ او که د مانځه نه مینه ئے ادانکړه۔ نو ورستو دے اداکړی او که د اختر په ورځ ئے ورنکړه۔ نو دا نه چه د ذمے نه ئے وغورزیده۔ بلکه په ذمه ئے پاتے ده۔ بیا دِ چرته ورکی۔

**مسئله[۴]:۔** که چا د اختر د ورځ نه مخکښ په روژه کښ صدقهٔ فطر په نیت د سرسایه ورکړه۔ نو هم اداکیږی۔ او که رمضان نه ئے هم مینه ورکړه۔ نو په دے صورت کښ بعضے وائی چه اداکیږی۔ او بعضے وائی چه نه۔

**مسئله[۵]:۔** که په صدقهٔ فطر کښ غنم یا د غنمو وړه یا د غنمو ستوان ورکوی نو نیم شرعی اوګے دِ ورکی۔ او که وریشے یا د وربشو وړه یا ستوان ئے ورکول غواړی نو پوره اوګے دے ورکی۔ او که د غنمو وربشو نه سوا بل څه غله ورکول غواړی۔ لکه وریجے۔ جوار۔ چنړه۔ باجره وغیره۔ نو دومره دِ ورکی۔ چه د هغے قیمت د نیم اوګی غنمو یا د یو اوګی وربشو سره برابر وی۔

**مسئله[۶]:۔** که د غنمو وړه یا ستوان ئے ورکول۔ نو چه په مقدار و قیمت کښ

---

۱ درمختار و رد المحتار ۱۲ ۲ هندیه و درمختار و رد المحتار ۱۲ ۳ درمختار و شامی ۱۲ ۴ شامی و هندیه ۱۲ ۵ هدایه ۱۲ ۶ هدایه ۱۲

برابروی دَنیم اوګی غنمو سره - اوکه دَاوربشو اوړه یاستوان ئې ورکول نوچه په مقدار او قیمت کښې
برابروی دَیواوګی دوربشو سره - اوپه دے کښې احتیاط دے۔

**فائده** :- کوم پوخ سیرچه بادشاه صاحب سوات په خپل ریاست کښې مروّج کړیدے
اودَیوسل اتۀ[۱۱۸] روپو جوک دے - دَ هغې په حساب سره نیم شرعی اوګے پنځه پاوه پنځه تولے لس
ماسے کیږی - اوکوم سیرچه دیوسل پنځۀ[۱۰۵] روپو جوک دے - دهغې په حساب سره نیم وګے پنځه
پاوه اونهۀ تولے او اوه ماسے کیږی - لیکن دَ احتیاط[ئے] خبره داده چه زیات ورکی۔ مثلاً
که غنم په مذکوره پوښ سیر ورکوی - نو یو نیم سیر دے ورکی - ځکه چه په زیات کښې بدی
نشته - بلکه ثواب دے - اوکه کم یکښې راغے نو نه اداکیږی۔

**مسئله** :- که غنم اوربشے ګډے وړے وے - یعنی شریکے - یا دَ دواړو وړه شریک
وو - نو اعتبار به اکثر لره وی - یعنی کوم یو چه زیات وی - مقدار دے دَ هغې پوره
کی - رلیکن که غنم زیات وؤ - نو په دے صورت کښې دنیم اوګی نه لږ زیات
ورکول غوره دی۔

**مسئله** :- که په صدقۀ فطر کښې ئې څۀ غنم ورکول - اوڅۀ وربشے - نو
جائز دی - خو شرط دادے چه مجموعه د مقدار شرعی نه کم نه وی - نو که دَیو وګی څلورم
حصه ئې غنم ورکړه - او نیم اوګے وربشے - یا دَیو اوګی څلورمه حصه ئې غنم ورکړه
او څلورمه حصه د غنمو وړه - نو هم صدقۀ فطر اداکیږی۔

---

له علامه شامی صاحب په جلد ثانی کښې دَ صدقۀ فطر په باب کښې داوړی دی - چه صاع څلور مُد دے -
او یو مُد دوه رطل یعنی من دے - یو من څلور استار دے - یو استار څلور نیم مثقال دے - نو من او مُد
دواړه یو دی - مُد یوسل اتیا مثقاله دے - دَ دے ماسے اته سوه لس جوړیږی - نو یو مُد اوو
شپیته تولے او شپږ ماسے شه - نو دوه مُدونه یعنی نیم صاع یوسل پنځۀ دیرش تولے شه - او
څلور مُدونه یعنی پوره صاع دوه سوه اویا تولے - که دشاه انورشاه صاحب په عرف شذی کښې چه
دیلی دی سه صاع کوفی هست اے مرد فهیم ‡ دوصد و هفتاد توله مستقیم - پس دا انګریزی سیر په حساب
سره کوم چه دَ اتیاؤ روپو جوک دے - نیم صاع لس ماسے دپاسه پاؤ کم دوه سیره دے - او دَ دے
ځائے دپوخ سیر په لحاظ سره دغه مقدار دے کوم چه متن کښې ذکر شه - لیکن دا ځائے دوه خبرے
نورے هم یاد ساتل ضروری دی - یو دا چه دَ نیم صاع کوم مقدار چه دَ سیرو نو په حساب سره ذکر
شه - دا قول په دے خبره مبنی دے چه روپئی یوولس نیمے ماسے ده - اوکه روپئے پوره دولس ماسے
وانخستے شی - بیا د مذکوره مقدار نه پنځۀ تولے لس ماسے کمول غواړی - یعنی بیا نیم صاع دَ سواتی سیر
په حساب سره پوره پنځۀ پاوه دے - او دَ پېښوری سیر په حساب سره پنځۀ پاوه او درے ماسے کم څلور
تولے - او دَ انګریزی په حساب سره پنځۀ چټانکئے کم دوه سیره - دویمه خبره داده چه علامه شامی صاحب
په بل حساب سره دمد وزن دوه سوه شپیته درهم خولے دے - بیا دنیم صاع په وزن کښې یو نیمه توله نور زیاتول غواړی
په اول حساب سره دنیم صاع تولے تولے یوسل پنځۀ دیرش دے او په دے حساب سره یوسل شپږ دیرش تولے او شپږ
ماسے کیږی - نو دے وجے نه مونږ احتیاطی حکم لیکو - چه نیم صاع که په انګریزی سیر ورکول غواړی نو درے چټانکئے کم
دوه سیره بلکه پوره دوه سیره دے ورکی - اوکه په بل سیر ورکول غواړی نو یو نیم سیر ۱۲ منه ـه ردالمختار ۱۲

**مسئله**[1] :- که صدقهٔ فطر کښې د اناج په ځائے د هغې قیمت ورکه - نو هم جائز بلکه غوره دی - اوکه اناج کمیاب وو - بیا اناج ورکول غوره دی -

**مسئله**[2] :- یو سړے که خپل صدقهٔ فطر یو فقیر له ورکوی - اوکه په ډیرو فقیرانو ئے تقسیمه وی - دواړه خبرے جائز دی - دارنګه که ګنې سړی یو فقیر له فطره ورکوی - نو هم خیر دے / لیکن یو فقیر له د نصاب زکوٰة موره ورکول ښه نه دی - مکروه دی -

**مسئله**[3] :- څوک چه د خپل طرفه او د خپل بچو د طرفه د صدقه فطر اناج ورکول غواړی هغه د هر یو حصه جدا جدا هم ورکولے شی - او بیس د جدا جدا تللو نه شریک هم ورکولے شی -

**مسئله**[4] :- په زکوٰة کښې د هغه مقام فقیرانو له اعتبار دے - په کوم مقام کښې چه زکوٰة مال وی - او په صدقهٔ فطر کښې د ورکونکی مقام له اعتبار دے - او د چا د طرفه چه ورکوی - د هغه د مقام اعتبار نشته -

**مسئله**[5] :- د صدقه فطر او د نذر او د کفارے هم هغه مصارف دی - کوم چه د زکوٰة په بیان کښې تیر شوی دی -

---

[1] شامی ۱۲ [2] در مختار رد المختار ۱۲ [3] شامی ۱۲ [4] شامی وهندیه ۱۲ [5] شامی ۱۲

# کتاب الصَّوم

## دَروژے بیان

**دروژے فضیلت**

درمضان روژے فرض دی۔ دا هم دَارکانِ اسلام نه یو رکن دے څوک چه ئے دَفرضیّت نه انکار کوی۔ هغه کافر دے۔ دروژے فضیلت او ثواب په حدیث شریف کښ ډیر راغلے۔ او دَروژه دار مرتبه دَخدائے پاک په نزد ډیره لویه ده۔ دَ بخاری شریف او مسلم شریف په حدیث کښ راغلی دی۔ چه دَ جنّت اته دروازے دی۔ دیوے نوم ریّان دے۔ په هغے به سوا دَ روژه نیونکو نه بل څوک نه ننوزی۔ دَریّان معنٰے ده ډیر سیراب۔ دا نوم[1] ورله یاله دے ورکړے نه ایښے شوے دے۔ چه هغه طرف ته عمده نهرونه او رنګ برنګ ګلونه او قسم قسم میوے دی۔ نو ګویا دغه دروازه په خپله سیراب او شاداب ده۔ یاله دے وجے نه چه څوک په هغه دروازه داخلیږی۔ هغه به دقیامت دَتندے نه محفوظ او دَ همیشه دپاره به سیراب او تروتازه وی۔

**دوئم** حدیث[2] چا چه دَرمضان روژے صرف دخدائے پاک دَ رضامندئ دپاره ونیوے هغه ته به مخکینی ټول ګناهونه معاف شی۔ (یعنے صغیره)

**دریم** حدیث[3]۔ بنده چه یو نیک عمل وکی۔ هغه ته ثواب یو په لس ورکیږی بلکه ددے نه زیات دَاوو سوو[4] پورے۔ لیکن په روژے کښ دا تحدید نشته۔ دَروژے ثواب دَدے نه هم زیات دے۔ خدائے پاک وائی "فَاِنَّهٗ لِیْ وَاَنَا اَجْزِیْ بِهٖ" ځکه چه روژه ځما دپاره ده۔ او خاص ځه به ئے بدله ورکوم۔ شاید په دے حدیث شریف څوک دا شبهه وکی۔ چه نیک عملونه خو ټول دَ خدائے دَ پاره دی۔ او بدله به ئے هم هغه ورکوی۔ نو دَ روژے دَ تخصیص څه وجه ده؟ نو جواب ئے دا دے چه په مونځ او دَس وغیره عملونو کښ دا سے ظاهری حرکات او انتقالات شته چه دَ هغے په سبب په کښ دَریا او دَ خود ګنجائش راتلے شی۔ لیکن روژه یو پټ شے دے۔ دا احتمال ورکښ نشته۔ لهٰ دے وجے نه ئے خدائ پاک ځان ته نسبت وکه۔ یا وجه دا ده چه اصل کښ نه خوړل او نه

[1] فتح الباری و فتح الملهم ۱۲ [2] مشکوٰة شریف ۱۲ [3] بخاری شریف ۱۲ [4] فتح الباری شرح صحیح البخاری ۱۲

سکل دَخدائے پاک یو صفت دے۔ او یہ حدیث شریف کښں راغلی دی " تَخَلَّقُوْا بِاَخْلَاقِ اللّٰهِ تعٰ "
یعنے دَخدای پاک دَ اخلاقو نمونہ پہ ځان کښں پیدا کئ۔ نوچہ بندہ دَسحرنہ دماښام پورے
ځان وساتہ۔ او دَخدائی صفت دَیوے ذرے سرہ ئے ادنیٰ مشابهت وکہ۔ نو خدائے پاک
ئے دا عمل خپل مبارک ذات تہ منسوب کہ۔ یا وجہ دادہ چہ دَروژے ثواب ډیر زیات
دے۔ نو گویا خدائے پاک فرمائی چہ دا ثواب بے حسابہ دے۔ دَدے علم بل چا تہ
نشتہ۔ نو دَفرشتہ پہ ذریعہ نہ۔ بلکہ زہ ئے پہ خپلہ ورکوم۔ او ځنے عالمان پہ دے
حدیث کښں (اَنَا اُجْزیٰ بِہٖ) مجھولہ صیغہ لولی۔ مطلب بہ دا شی چہ خدائے پاکؐ وائی
دروژے بدلہ خو پہ خپلہ ځہ یم۔ یعنے پہ قیامت کښں بہ روژہ دارتہ دمولی دیدار
نصیب کیږی۔ الحمد للہ دروژے څومرہ لوئ فضیلت دے۔

څلورم حدیث دَروژہ دار دَخولے بدبوئ دخدائ پاک پہ نزد دمشک دعنبر
دَخوشبوئی نہ ښہ دہ۔ دَدے حدیث پہ مطلب کښں هم محدثانو ډیر احتمالات بیان
کړیدی۔ یو دا چہ دَروژے پہ حالت کښں دَروژہ دار پہ خولہ کښں چہ کومہ بدبوئ
پیدا کیږی۔ دَھغے پہ عوض کښں بہ دَقیامت پہ ورځ دَھغہ پہ خولہ کښں دَمشکؐ
عنبر دَخوشبوئ هم پاکیزہ تر خوشبو پیدا کیږی۔ او هغہ بہ خدائے پاک تہ محبوبہ
وی۔ او دا بدبو چونکہ دَھغے ذریعہ دہ۔ لہ دے وجہ دا هم دَخدائے پاک پہ نزد غورہ
دہ۔ او دا مطلب نہ دے۔ چہ گوندے مسواک دے نہ وهی۔ بدبوئ دِ نہ لوے کوی۔
دویم دا چہ روژہ دارلہ بہ داسے ثواب ورکړے شی۔ چہ هغہ بہ دَمشک وعنبرو
دَخوشبوئ هم ډیر مرغوب او پسندیدہ وی۔
دریم دا چہ دَروژہ دار دَخولے بدبوئ فرشتو تہ دَمشکو عنبرو دَخوشبوئ نہ
خوگہ محسوسیږی۔
څلورم دا چہ پہ قیامت کښں بہ ټول عبادتونہ او نیک عملونہ دنورانی اجسام
پہ شکل کښں ښکارہ کیږی خوشبودار۔ لیکن دروژے خوشبو بہ دَټولو نہ ممتازہ وی۔
او دَمشکو عنبر دَخوشبوئ نہ هم زیاتہ۔
روایت دروژہ دار دپارہ دوہ خوشحالئ دی۔ یوہ دروژے ماتولو پہ وقت
کښں او بلہ دقیامت پہ ورځ دَخپل رب دَملاقات پہ وقت۔
روایت دقیامت پہ ورځ بہ دَروژہ داردَ پارہ دَعرش پہ سوری کښں دسترخوان

---

۱ بخاری شریف ۱۲ ۲ فتح الباری ۱۲ ۳ الخطیب ۱۲ ۴ درمنثور ۱۲

او غوړولے شی - او دے به په هغه طعام خوری - او خلق به لا د حساب کتاب نه نوی وزګار شوی - نو خلق به وائی - داکسان څوک دی؟ چه په مزه مزه ګیادی - او مونږه لا نخنی یُو په حساب کښ - جواب به ورکړے شی چه دوی به په دنیا کښ روژے نیولے او تاسو به خوړل - دی به د شپے عبادت کاوُ او تاسو خوب -

**روایت** :- د ماهِ رمضان په اهتمام کښ د جنت د ښائیست او د آراسته کولو انتظام دَ کال د اول سرنه شروع شی او د آخره پورے وی - نو چه د روژے اوله شپه راشی د عرش لاندے د جنت د پانړو نه په حورعین باندے یو باد راوالوځی نو دوی وائی خدایه یاکه! مونږ له دَ خپلو بندګانو نه څه خاوند ان نصیب کړے چه مونږ په هغوی خوشحاله یُو - او هغوی په مونږه -

دلیلة القدر فضیلت | د سورة قدر - یعنی اِنَّآ اَنۡزَلۡنٰهُ فِیۡ لَیۡلَةِ الۡقَدۡرِ (الخ) په شانِ نزول کښ ځنے مفسرانو راوړی دی - چه حضور نبی علیه السلام یو ځل صحابهٔ کرامو ته دَ بنی اسرائیلو څه حالات بیانول - په دے دوران کښ ئے دَ هغوی د یوُ زاهد تذکره وکړه - چه نوم ئے شمعون یا سمسون وُ - وئے فرمائیل چه هغه دَ زرو کالو پورے عبادت کړے وُ - دَ ورځے به ئے روژه وه او جهاد به ئے کاوه - او دَ شپے به ئے هم عبادت کند اری کوله - نو صحابهٔ کرامو نبی علیه السلام ته عرض وکړه - چه یا رسول الله! مونږ دَ هغه درجے ته څه رنګ رسیدے شو - حال دا دے چه حضورنو عمرونه اکثر زیات نه زیات دَ شپیتو وُ اتیاوُ پورے رسی - او د عمر درېمه حصه په ناپوهئ او په خوب کښ لا ړه شی اَتۀ حصه دَ اسباب معاش په تلاش کښ - او د ضروریاتو دَ زندګئی په طلب کښ تیره شی - او څه په مرض او په سستئ وغیره کښ نو چرته څلورمیاشتے د بره دے انیاکاله او چرته حضورنو پاتے یو څه عمر نو په نبی علیه السلام باندے هم دے خبرے اثر وکړه - فکرئے کاوُ چه په دے دوران کښ سورة قدر نازل شه - نو په دے دَ دے سورة حاصل مطلب دا شه - چه ستاسو عمرونه اګرکه کم دی - لیکن مادر له یوه غوره شپه درکړه چه په هغے کښ عبادت کول دَ هغه زرو میاشتو د عبادت نه غوره دی چه په هغے کښ لیلة القدر نه وی دے شپے ته دَ لیلة القدر ویلو وجه دا ده چه فضیلت ئے دَ نورو شپو نه زیات دے په څو شوو جوهو سره

له بیهقی ۱۲ سه دا اکثر بیان د تفسیر کبیر او دَ تفسیر عزیزی نه یعنی دَ تفسیر فتح العزیزنه را غستے شوے دے ۱۲ منه ته د دے امت د پاره دا دَ نګ نور خصوصیات هم شته ۱۲ منه

یو وجه داده چه په دے شپه د عابدانو او زاهدانو مرتبے اوچتیږی - او د هغوی درجے فرشتو ته او ارواحو ته خوښے شی -

دویمه داچه د عابدانو او د صالحینو د ملاقات د پاره ملائکے او ارواح راکوزیږی - او جبرائیل امین د خاصو کسانو سره مصافحه کوی - نخښے داده چه غوښے په بدن زیږ زیږ شی - او په زړه کښ خاص قسم رقّت (نرمی) پیدا شی - داوجه حضرت شیخ عبدالقادر جیلانی رح په خپل کتاب غنیه کښ هم راوړے ده -

دریمه داچه په دے شپه د ماښام نه تر سحره پورے په عابدانو صالحانو بانی د خالق د طرفه یو خاص فیضان او مهربانی کیږی - او دوی ته معنوی قرب حاصلیږی

څلورمه داچه په دے شپه د فرشتو د کثرت په وجه په عبادت کښ یو خاص لُطف یعنے لذّت او خوند معلومیږی - چه هغه په نورو شپو کښ نه وی -

پنځمه داچه په دے شپه قرآن پاک[1] نازل شوے دے -

شپږم داچه فرشتے په دے شپه پیدا شوی دی -

اوومه داچه د آدم علیه السلام د خلقت ماده په دے شپه جمعه کړے شوے ده -

اتمه داچه د جنت زیب وزینت په دے شپه تکمیل ته رسیدلے دے -

او د لیلة القدر علامات مختلف خو ولی شوی دی - څینے وائی چه په دے شپه ونے کښے غروته بلکه هرشے ټیټ او په سجده پریوتلے معلومیږی - څینے وائی چه په دغه شپه یو نُور داسے عام وُحُلیږی - چه د هغے په وجه د تیرے ځایونه هم روښانه شی - او هر طرف ته پیرق پهوق شی - څینے وائی چه په دغه شپه د فرښتو د خطاب او د سلام آواز اوریدلے کیږی - څینے وائی چه په دغه شپه د سمندر په اوبو کښ نمکینی نه وی - او د حضرت ابیّ ابن کعب رض نه دا علامت هم منقول دے - چه د دغه شپے په صباله د نمر ختو په وقت کښ د نور دنړا د نورو ورځو نه کم وی وجه داده چه فرشتے واپس آسمانونو ته ځیجی - نو د نمر په رڼا کښ هغه تیزی نه بنکاری -

علامتونه خو ډیر خو ولی شوی دی - لیکن اصل خبره داده چه علامتونه لیدل ضروری نه دی - بے د دے نه هم کیدے شی - او د لیلة القدر په تعین کښ ډیر اختلاف دے - تقریبا شپږ څلویښت[2] قولونه په کښ د عالمانو شته - او څینے د رمضان المبارک

ـه د لوح محفوظ نه آسمانِ دنیا ته یعنے بیت العزّت ته په دے شپه مجموعه نازل شوے دے - او د بیت العزت نه چه په نبی علیه السلام باندل لږ لږ نازلیده هغه په درویشت کاله کښ پوره شو - ۱۲ منه   ـه شامی ۱۲

اوویشتمې شپې له ترجیح ورکوی - حضرت ابن عباس رض دا تاریخ د سورهٔ قدر نه هم
راایستلې دے - داڅ چه د لیلة القدر نهه حروف دی - او دا دے ذکر په سورهٔ قدر کښې
درے ځله راغلے دے - نو چه درے په نهه کښې ضرب شی - حاصل ضرب اوویشت دا دی
دا د لیلة القدر تاریخ ته پټه اشاره شوه - او ځینې عالمان دا تاریخ د مذکوره سورة
نه په بله طریقه هم اوباسی - داڅ چه ټولے کلمے په دے صورت کښې دیرش دی او ویشتمه
کلمه هی ده - د هی معنیٰ هغه - یعنے لیلة القدر خیر - خو د لیلة القدر په تعین کښې
اختلاف ډیر دے - مونږ په حتمی طور سره دا تخصیص نه شو کولے - چه همیشه به
خاص په فلانی تاریخ وی - وجه دا ده چه خدائے پاک تعین نه دے کړے - او د خلقو
دا نسبت نه ئے پټه ساتلے ده - او په دے پټ ساتلو کښې ئے هم ډیر حکمتونه دی -
یو حکمت دا دے چه عامو خلقو ته که معلومه وے چه فلانئ شپه د لیلة القدر
ده - نو نیکانو به په کښې نیک عمل کاوه - د هزار میاشتو عبادت ثواب به ئے مونده -
او بدانو به په کښې بد عمل کاوه - نو د هزار ماه ګناه پیټې به ئے په سر اوړے - نو
رحمت الٰهی دا و غوښتل چه پټه دے کړے شی - دپاره د دے چه دیده دانسته
په کښې ګناه ونکړے شی -

دویم دا دے چه لیلة القدر که په تخصیص سره معلومه وے - نو ډیرو کسانو
به د فرائضو په ادائیګئ کښې کوتاهی کوله - په عبادت کښې به ئے د سستئ نه کار
اخست - او د ګناهونو نه به ئے د بچ کیدو اهتمام نه کاؤ - خیال به ئے داؤ - چه ځه
په شپه د لیلة القدر به تو به اوباسو - عبادت به وکو - د زرو میاشتو د عبادت
ثواب به حاصل شی دغه پوره ده - او هم دا وجه معلومیږی - چه خلقو ته د
هغوئ د مرګ تاریخ او دا رنګ د قیامت خاص تاریخ نه دے ښودلے شوے -

دریم دا دے چه د لیلة القدر تاریخ مجهول وی - نو خلق به د هغے طلب او
جستجو هره شپه کوی - نو اجر او ثواب به ډیر حاصل کړے شی - لکه چه د جمعے په
ورځ کښې د دعا قبلیدو یو ساعت شته - لیکن په تخصیص سره نه دے ښودلے
شوے - چه هغه خاص فلانے وقت دے - دپاره د دے چه بنده هر وقت د هغے په
ګمان خپل خالق ته متوجه او زاری کوونکے وی - لکه چه شاعر ویلی دی ؎

یک چشم زدن غافل ازاں شاہ نباشی
شاید کہ نگاہے کند آگاہ نباشی

دا رنګ په مونځونو کښې مینځنے مونځ - په اسماءِ الٰهیّه کښې اسم اعظم - په خلقو کښې ولی الله په دے نورلو مصلحتٗ پرده اچولے شوے ده -

په هرحال دلیلة القدر موندلو دپاره ذریعه داده چه د تهجدُ مونځ همیشه کوی - نو بیا به یوه شپه خو به په کښې ضرور دراشی - او دغه د غت هسے هم د مقبولیت او د دعا قبلیدو وقت دے - په صحیح حدیث کښې راغلی دی چه خدائے پاک هرے شپے په آخری حصه کښې آسمانِ دنیا ته نزول فرمائی (یعنے د هغه رحمت بندګانو ته بنده متوجه شی) نو وائی چه شته څوک چه ځان ته څه اوغواړی زه ورله ورکم - شته څوک چه توبه اوباسی زه ئے قبوله کم - شته څوک چه ځان ته رزق طلب کی چه څه ورله ورکم - وغیره وغیره - د دے وجے نه بزرګانو ویلی دی - سه

اے خواجه چه پرسی زشبِ قدر نشانی
هرشب شبِ قدر است اگر قدر بدانی

لیکن که څوک دا نشی کولے - نو کم نه کم د رمضان المبارک په آخری لسو شپو کښې دے شب بیداری کوی - نبی علیه السلام به خصوصاً په دے تاریخونو کښې ډیر زیات اهتمام کاؤ - او ازواجِ مطهرات به ئے هم د تهجد دپاره ویخول - او صحیح حدیث دے - چه لیلة القدر د رمضان آخری لسو ورځو په طاق شپو کښې کورئ - یعنے په یوویشتمه [21] درویشتمه [23] - پنځه ویشتمه [25] - اووه ویشتمه [27] - یو کم دیرشمه [29] - ختم شد دا مضمون -

د لیلة القدر او د روژے فضائل او مسائل ما په خپل کتاب کښې په تفصیل سره بیان کړی دی - د هغے نوم دے - "خیر الکلام فی شهر الصیام -" او دے په اردو کښې - دا ځائے م د هغے په مختصره طریقه سره نقل وکه او ترجمه -

**د شکی روژے بیان**

**مسئله** [1] :- د شک په ورځ د رمضان په نیت سره روژه نیول منع دی - لیکن که چا ونیوه او بیا معلومه شوه چه دغه ورځ د رمضان وه نو فرض روژه ئے ادا شوه - او که معلومه شوه چه د شوقدر دیرشم تاریخ وو - بیا به نفل شی - او که مات ئے کړه - نو د دے نفلی روژے قضا یے وائی نشته -

**مسئله** [3] :- د شک په ورځ که چا د بل واجب روژے په نیت روژه ونیوله - نو

لے هدایه ودرر ج ۱ ص ۳ هذه المسائل ماخوذة من الهدایه وکذا من در المختار ورد المحتار ۱۲

ع یعنے تهجد خو به ئے نو عمر هم همیشه کول ۱۲

دا هم مکروه دی ۔ لیکن که پس دنیولو نه معلومه شوه چه دغه ورځ د رمضان وه ۔ نو فرض روژه ادا شوه ۔ او که معلومه شوه چه د شوقدر آخری ورځ وه ۔ نو په دے صورت کښې صحیح خبره داده چه د کومے روژے نیت ئے کړے وُ ۔ هغه ادا شوه ۔

مسئله[۱] :۔ که چا نیت صرف په دے طریقه وکه ۔ چه صبا که رمضان شه ۔ روژه به نیسم ۔ کنی نو نه ۔ نو په دے نیت سره روژه نه کیږی ۔ ځکه چه جزم په کښې نشته ۔ دارنګ که چا نیت صرف دا وکه ۔ چه صبا که ما د خوراک د پاره څه او موندله ۔ بوژه به م وی ۔ کنی نو روژه ۔ نو په دے نیت سره هم روژه نه کیږی ۔

مسئله[۲] :۔ که نیت ئے په دے طریقه وکه ۔ چه صبا به روژه نیسم ۔ که رمضان شه د رمضان به شی ۔ او که رمضان نه شه نو د نذر به شی رمثلاً ) نو دا هم مکروه دی ۔ لیکن که وے نیوله او بیا معلومه شوه چه دغه ورځ د رمضان ورځ وه ۔ نو روژه ئے د رمضان ادا شوه ۔ او که معلومه شوه چه د شوقدر وه ۔ نو د نذر روژه ئے نه اداکیږی ۔ بلکه نفل شوه ۔ او که ماته ئے کړه قضا پے نشته ۔

مسئله[۳] :۔ که نیت ئے په دے طور وکه چه صبا به روژه نیسم ۔ که رمضان شو نو د رمضان کنی نو نفل ۔ نو دا هم مکروه دی ۔ لیکن پس د نیولو نه معلومه شوه چه دغه ورځ د رمضان وه ۔ نو روژه د رمضان ادا شوه ۔ او که معلومه شوه چه د شوقدر وه ۔ نو روژه ئے نفلی وشوه ۔

مسئله :۔ که د شک په ورځ ئے څه خوړل سکل وغیره کړی وُ ۔ بیس د هغے نه ثابته شوه چه نننۍ ورځ د رمضان وه ۔ نو د ماښام پورے پے امساک واجب دے یعنے د ماښام پورے دے ځان د خوراک وغیره نه په شان د روژه دار وساتی ۔ اګر که دغه روژه ئے نه کیږی ۔ دارنګ که د شک په ورځ ئے څه خوراک وغیره نه وو کړی ۔ خو د رمضان ثبوت په دغه ورځ په داسے وقت کښې اوشه ۔ چه د وُس نیت د روژے نه صحیح کیده ۔ نو هم پے د ماښامه پورے امساک واجب دے ۔ اګر که دغه روژه ئے نه کیږی ۔

مسئله :۔ د شک په ورځ دے عوام نفل روژه هم نه نیسی ۔ لیکن که بینه به چا الش رمثلاً ) د کل یا د زیات په ورځ روژه نیوله ۔ او شکی روژه هم په دغه ورځ واقع شوه ۔ نو ده له په دغه ورځ نفل روژه نیول غوره دی ۔ دارنګ که د شوقدر په آخیری

---

[۱] تا [۳] هذه المسائل ماخوذة من الهدایه وکذا من در المختار ورد المحتار ۱۲ مجمع الانهر ۱۲ ۵ هدایه ودر ورد ۱۲

درے ورځ یا ددریو نه زیاتے نیسی۔ نو خیر دے۔ بنه ده۔ خو پرازے آخری یوه یا دوه که نیسی۔ په دے کښ اختلاف دے۔ نو نه دے نیسی۔

**مسئله**:۔ دشک په ورځ که نفل روژه ونیوے شوه۔ او بیا معلومه شوه چه دغه ورځ د رمضان وه۔ نو فرض روژه ادا شوه۔ ځکه چه د رمضان روژه د نفل په نیت هم ادا کیږی۔

**فائده**:۔ که د شوقدرپه دیرشمه شپه مطلع صاف نه وه۔ په دے وجه میاشت ونه لیدے شوه۔ نو صبانئ ورځ د شک ده۔ او که مطلع صافه ده۔ او ونه لیدے شوه۔ نو صبانئ ورځ ته به د شک وایو او که نه۔ په دے کښ اختلاف دے۔ ځینے وائی چه و۔ او ځینے وائی چه نه۔ لیکن د دے باب کوم مسئلے چه تیرے شوے هغه به باقاعده جاری کیږی۔

**مسئله**:۔ که د شوقدرپه دیرشمه شپه میاشت ونه لیدے شوه۔ په سبب د دے چه مطلع صافه نه وه۔ نو غوره داده چه قاضی او مفتی او نور خواص احتیاطاً د نفل په نیت صبا روژه ونیسی۔ او عوام د نیت د روژے نه کوی۔ خو د نصف النهار پورے دے انتظار و کی۔ ځان د د خوراک وغیره نه وساتی۔ که ثابته شوه چه نن د رمضان ورځ ده۔ نیت د د وکی۔ روژه دے ونیسی۔ کنی نو پس د نصف النهار نه دے عوام خوری سکی۔ روژه کوی دے نه۔

| دمیاشت لیدلو بیان |
|---|

**مسئله**:۔ خلقوله پکار دی۔ چه د شوقدر په یوکم دیرشمه ورځ ماښام مالے میاشت سینکی۔ که وئے لیده۔ د صبانه دے د رمضان روژے شروع کی۔ کنی نو د شوقدر دیرش ورځے چه پوره شی۔ هله دے شروع کوی۔

**مسئله**:۔ که آسمان دونړ و یعنے مطلع صافه وه۔ نو میاشت د روژے وی او که د اختر۔ د هغے ثبوت په شهادت معروف نه سره نه راځی۔ بلکه د کښیر د خلقو لیدل ضروری دی۔ چه د هغوئ په خبره سره حاصلیږی یقین یا غالب گمان۔ او که آسمان صاف نه و۔ وریځ وه۔ یا گرد و غبار۔ نو د روژے د میاشتے د ثبوت دپاره د یوتن شاهدی هم کافی ده۔ برابره خبره ده چه نروی او که ښځه۔ مرئے وی او که آزاد خو وی ثقه دیندار۔ او وائی چه مالیدلے ده۔ او د اختر د میاشتے ثبوت د یوتن په خبر سره نه راځی۔ بلکه شهادت ضروری دے۔ یعنے دوه ثقه سړی

ل شرح التنویر ۱۲ ۲ درمختار و رد المحتار ۱۲ ۳ هدایه وخانیه ومبسوط ومجمع الانهر ۱۲ ۴ هدایه ۱۲
۵ شرح الهدایه و بحر رایق و در ۱۲

یا یو ثقه سړے او دوه ثقه ښځې دَ خپلو لیدو شاهدی وکی۔ هله به ثبوت راځی۔ او که ځلورو ښځو شاهدی کوله۔ نو دا شاهدی هم قبوله نه ده۔

**مسئله**[۱] :- که په یو مقام کښې میاشت با قاعده ولیدے شوه۔ دا په بل مقام کښې هم معتبر ګڼړے شی۔ خو هله چه خبر په معتبره طریقه ورسی۔ برابره خبره دَ چه د دواړو ځایونو په مینځ کښې فاصله لږه وی او که ډیره۔

**مسئله**[۲] :- دا ویل چه میاشت خولویه ده۔ د دوؤ ورځو معلومیږی۔ دے له اعتبار نشته۔ دا رنګ دَ نجومیانو قول له هم اعتبار نشته۔ معتبر خو لیدل دی یا دَ شو قدر دیرش ورځې پوره کول۔

**مسئله**[۳] :- که دَ روژے میاشت صرف یو تن لیدلے ده۔ او دَ هغه شاهدی امام په څه وجه قبوله نه کړه۔ نو دے دے په خپله صبا روژه ونیسی۔ لیکن که بیا دَ نیولو نه ئے ماته کړه۔ نو قضا پے شته او کفاره پرے نشته۔

**مسئله**[۴] :- دغه سړی که دَ خپلو لیدو په حساب دیرش روژے پوره کړے او دَ اختر میاشت وُنه لیدے شوه۔ نو دا نهٔ۔ چه دے به ځان له اختر کوی۔ بلکه اختر به دَ عامو خلقو سره مطابق کوی۔

**مسئله**[۵] :- که دَ اختر میاشت صرف یو سړی ولیده۔ نو دَ یو سړی په شاهدئ سره خو دَ اختر دَ میاشتې ثبوت نه راځی۔ نو دے به ځان له نه اختر کوی۔

**مسئله**[۶] :- که د روژے میاشت د دوؤ معتبرو سړو په شهادت سره با قاعده ثابته شوے وه۔ او په دے حساب سره دیرش روژے پوره کړے شوې بیا په یو دیرشمه شپه دَ اختر میاشت ونه لیدے شوه۔ ځکه چه مطلع صافه نه وه نو صباله دے اختر کی۔ او که آسمان صاف وُ۔ خو وُنه لیدے شوه۔ نو په دَ صورت کښې اختلاف دے۔ خو والئ صحیح قول دا دے چه صباله دِ اختر کی۔

| نیت دَ روژے | **فایدهٔ**[۷] :- روژه ادوه قسمه ده۔ یوه فرض معین۔ یعنی |
| --- | --- |

هغه فرض روژه چه وقت ورله خاص وی۔ هغه دَ رمضان ادائی روژه ده۔ دویم فرض غیر معین۔ او هغه قضا روژه دَ رمضان۔ او روژه دکفارے هم فرض ده عملاً دریمه واجب معین لکه روژه دَ نذر معین۔ ځلورمه واجب غیر معین لکه روژه دَ نذر غیر معین او قضا د هغه نفلی روژے چه ماته کړے ئے وی۔

[۱] فتاویٰ هندیه وشرح التنویر ۱۲ [۲] شرح التنویر ۱۲ [۳] در مختار وشرح الهدایه ۱۲ [۴] هندیه ۱۲
[۵] هدایه ۱۲ [۶] در مختار وبحر وخلاصه وبدایع وهندیه ۱۲ [۷] در مختار وشامی ۱۲

پنځمه نفل[1] - شپږم مکروه تنزیهي - لکه یوازې روژه د عاشورې - او مه مکروه تحریمي - لکه روژه د اختر دو رځې - او د ایام تشریق او شکی روژه -

**مسئله**[2] :- روژه بې د نیت نه نه صحیح کیږي - په زړه کښې د روژې نیولو پخه اراده او قصد ضروري دې - بس دا نیت دې - په ژبه ویل ضروري نه دي - خوکه ویې وې نو ډیره ښه ده - چه صبا به د دې میاشتې فرض روژه نیسم خاص د خدای د پاره او که په عربئ کښې وائی لا ډیره ښه ده - دا سې دې وائی نَوَیْتُ اَنْ اَصُوْمَ غَدًا لِلّٰهِ تَعَالٰی مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ - یا د ې دا سې او وائی بِصَوْمِ غَدٍ نَوَیْتُ - او ځمونږ حنفیانو په نزد د رمضان د هرې یوې روژې د پاره مُستقل مُستقل نیت ضروري دے -

**مسئله**[3] :- د رمضان د ادا ئ د پاره نیت د شپې پکار دے - چه صبا به فرض روژه نیسم - او که د شپې ئې ونکه - نو د ورځې هم نیت کولې شي - چه نن م روژه ده - خو هله چه نیت د شرعي نصف النهار نه مخکې مخکې وکي - او د نفل روژې او د نذر معین او د اداء رمضان د دې دا ړو یو حکم دے - یعنې د نصف النهار نه چه مخکې نیت وکي - هم صحیح کیږي - خو هله چه د روژې خلاف څه عمل ئې نه وي کړے - او وس دا سې نیت وکي چه نن م روژه ده - دا سې نیت نه چه د وس نن م روژه ده - او د مذکوره درې قسمونو نه سوا چه کومې روژې دي - لکه قضاء د رمضان - قضاء د نذر معین - یا روژه د نذر مطلق وغیره وغیره - د هغې د پاره نیت د شپې ضروري دے - که صرف د صبح صادق ختونه پس ئې نیت وکه - نو نه دے معتبر - د غه روژه په نه اداکیږي - بلکه نفل کرځي -

**مسئله**[4] :- په شریعت کښې ورځ د صبح صادق شروع کیږي و نه د پوره نوز پریوتو پورې ده - او نصف النهار د ورځې نیمه نه ویلے شي - چونکه ورځې په یو حال نه وي - او کم یږي لنډیږي - په دې وجه یو نصف النهار نه شي متعین کیدے - چه کوم همیشه به په دولس بجې وي - یا په دولس نیمې وغیره - نو د کومې ورځې نصف النهار چه معلومول غواړې - د هغې ورځې ټولې ګهنټې دې جمع کي - نو نیمه ئې نیمه د د غه ورځ ده

[1] دا ځائې د نفل نه مراد عام دے - برابر خبره ده چه سنت وي لکه د عاشورې روژه سره د یو لسمې - بعضې وائي چه دا سنت ده - او که نورې نفلي روژې وي - لکه د نفل روژې په بیان کښې به په تفصیل سره راشي ۱۲ منه [2] در مختار ورد المختار ۱۲ [3] هندیه ورد المختار ۱۲ [4] برجندي وغیره ۱۲

**مسئله**:- دَ نوړ پریوتونه مینه نیت کول صحیح نه دی۔ دا رنګ په وقت دَ نصف النهار کښې۔ او پس دَ نصف النهار نه۔ نو که چا دَ نوړ پریوتونه مینه نیت وکه۔ چه صبا به روژه نیسم۔ بیا داسے بے هوشه شه۔ یا اُوده شه۔ چه په دویمه ورځ دَ نصف النهار په وقت کښې دَ هغے نه په هوش کښې راغے بیدار شه۔ نو چونکه نیت ئے نه دے شوے۔ دغه روژه ئے نه اداکیږی۔ په ذمه به ئے قضا پاتے شی۔ دا رنګ که صرف په وقت دَ نصف النهار کښې یا پس دَ نصف النهار نه چا نیت وکه۔ چه نن م روژه ده۔ نو په دے نیت سره هم روژه نه اداکیږی۔

**مسئله**:- که په رمضان کښې ئے دَ شپے نیت وکه۔ چه صبا به روژه نیسم بیا ئے دَ شپے دغه نیت بدل که۔ چه نه به نیسم۔ نو وس نوے نیت ضروری دے۔ او که دَ شپے ئے نیت کړے وُ۔ بیا ئے دورځے هغه نیت فسخ کول یعنے ماتول غوښته۔ نو دا فسخ صحیح نه دے۔

**مسئله**:- که میاشت د روژے وه۔ او په نیت کښې ئے صرف دومره اووے چه صبا به روژه نیسم۔ یعنے دَ رمضان او دَ فرض وغیره نوم ئے وانغست۔ یا ئے اووے چه صبا به نفلی روژه نیسم۔ یا ئے اووے چه صبا به دَ نذر روژه نیسم۔ یا دَ کفارے وغیره نوم ئے واغست۔ نو په دے ټولو صورتو نو کښې نیت صحیح دے۔ او روژه به ئے دَ رمضان اداکیږی۔

**مسئله**:- که قضا روژه ئے نیوله۔ او نیت ئے دَ شپے نه وُ کړے۔ بلکه نیت ئے دَ صبح صادق ختو نه پس وکه۔ نو په دے نیت سره دغه روژه نه اداکیږی۔ بلکه نفل شوه۔ او که ماته ئے کړه۔ نو صحیح خبره داده۔ چه دَ دے قضا پے هم لازمه ده۔

**مسئله**:- که مثلاً یوسړی نذر او مانه۔ چه زه به دَ دے بزرګے میاشتے په دے راتلونکی اول زیارت روژه نیسم۔ بیا ئے دَ دغه زیارت په شپه دَ قضاء رمضان یا د کفارے یا دَ بل واجب نیت وکه۔ چه صبا به نیسم۔ نو په دے نیت سره به دا روژه اداکیږی۔ د کومے چه ئے نیت کړے دے۔ او دَ نذر روژه به بیا قضا راوړی۔ په دے نیت سره هغه نه ده اداشوے۔ برابره خبره ده۔ چه دے تندرست وی۔ او که مریض مقیم وی او که مسافر۔ او که د دغه زیارت په شپه ئے نیت دَ نفل روژے وکه۔ چه صبا

---

ل ردالمحتار ١٢ ک درورد ١٢ ک بحرالرائق وردالمحتار ١٢ ک که مسافر یا مریض په روژه کښې دَ نفل یا دَ بل واجب نیت وکه۔ نو په دے کښې تفصیل دے۔ چه روژه به کومه اداکیږی ١٢ منه ک درمختار وردالمحتار ١٢ ک یعنے مقیم وُ۔ په غیر رمضان کښې ئے قضا روژه نیوله ١٢ ک بحروشامی ١٢

په نفل روژه نیسم - نو په دے نیت سره د نذر هغه روژه اداکیږی. په نزد د امام ابویوسف صاحب - او امام محمد صاحب وائی چه د نفل په نیت سره هغه نه اداکیږی - بلکه دا نفلی شوه - او د نذر روژه به بیا قضا اوړی.

| په کوموشیانو سره چه روژه نه ماتیږی د هغې بیان | که روژه ئے وه - او په هیره ئے څه اوخوړه - یائے وسکه - اګر که په مړه ګیډه وی - روژه پے نه ماتیږی - بلکه په هیره ئے |
|---|---|

څو څو ځله اوخوړه وسکه - نو هم پے نه ماتیږی - اوکه په هیره ئے جماع وکړه - په دے هم روژه نه ماتیږی.

مسئله :- که چا په حالت د روژے کښی په هیره سره څه خوړل سکل - او بل ولیدو - نو که خوړونکے ضعیف او کمزورے وی - نو یاده وی دے ورته نه - خیر دے اوکه تکړه وی - نو یاده ول ورته ضروری دی.

مسئله :- که بے اختیاره ئے حلق ته مچ لاړ - یا لوګے یا دوړه - نو روژه پے نه ماتیږی - البته که قصداً ئے داسے وکړه نو ماته به شی.

مسئله :- روژه دار که تیل و ټکول یا رانجه - نو په دے سره ئے روژه نه ماتیږی - بلکه د ستر کو تورو لو نه لیس که د رنجو رنګت په توکانړو کښ یا په قنړو کښ ښکاره شه - هم پے نه ماتیږی

مسئله :- په توکانړو تیرولو سره روژه نه ماتیږی - نو که په خوله کښی ئے جمعه کړے بیائے په هیره تیرے کړے - هم نه ماتیږی - دارنګ که پوزه ئے په زوره راخکوده چه حلق ته اورسیده - یائے شونډے په توکانړو لمدے شوے بیائے هغه وخته - تیرے ئے کړے - یا ئے لاړے توکلے - خو تارئے لا نه وُشوکیدے چه رائے خکوده - او تیرے ئے کړے - نو د دے ټولو حکم یو دے - چه روژه پے نه ماتیږی -

مسئله :- غیبت کول او کنځل او فحش ویل او غیره خو هسے منع دی او په حالت د روژے کښی لا بده خبره ده - لیکن روژه پے نه ماتیږی - روژه په کیدو وُشی خو هغه اثر او برکت ئے نشته -

مسئله :- روژه دار له بکار دی - چه د خولے ګنګالولو نه لیس توکانړے وتوکی - که څه لوند والے ئے په خوله کښی پاتے شه - او هغه ئے د توکانړو سره تیر که

ل شرح الهدایه و هندیه ۱۲ ۲ بحر رائق و هندیه ۱۲ ۳ شرح التنویر ۱۲ ۴ مراقی و مبسوط ۵ خانیه و مراقی ۱۲ ۶ قاضیخان ۱۲ ۷ در مختار و شامی ۱۲

نو روژه پرې نه ماتیږي۔ او که خولې ته ئې خوا که واچول۔ بیا ئې تو کړل۔ لیکن څو څاڅکي ئې خوندئې په خوله کښې پاتې شوي وُ۔ هغه ئې د تو کانړو سره تیر که۔ نو روژه پرې ماتیږي او که دداروا اثرئې د لرې نه په حلق کښې محسوس که۔ په دې سره نه ماتیږي۔

**مسئله**[1] :- که غوږ ته ئې اوبه لاړې۔ په دې سره روژه نه ماتیږي۔ او که قصداً ئې ورته واچولې۔ نو په دې کښې اختلاف شته۔ خو صحیح قول دا دې۔ چه نه ماتیږي۔ او که په غوږ کښې ئې دُکې ننیستې۔ خیرې ئې ترې راوویستې۔ بیائې سره دَ خیرې په دویمې ور ننیستې۔ په دې سره هم نه ماتیږي۔

**مسئله**[2] :- که دَ روژې په حالت کښې ئې په هیره سره څه شې خوړو۔ بیا ورته یاد شو۔ سره دَ یادیدو ئې فوراً وغورزاوَ۔ یائې پیشنې کاوُ۔ په دې کښې صبا راوتو کیدو سمدستي ئې هغه توړې دَ خولې نه اوغورزوله۔ نو په دواړو صورتو کښې ئې روژه په ځائې ده۔ هاں که پس دَ یادیدو نه یا پس دَ صبا ختو نه ئې دَ خولې هغه توړې ئې نکړه بلکه قصداً ئې تیره کړه۔ نو روژه خلاصه او قضا او کفاره پرې دواړه لازم شو۔

**مسئله**[3] :- که په غاښونو کښې ئې غوښه نختې وه۔ یا بل څه شې۔ او هغه ئې دَ روژې په حالت کښې راوویست۔ تیرئې که۔ نو که دَ چڼې ددانې مورد وُ۔ یا ترې زیات وُ۔ نو روژه ئې لاړه۔ او که کم وُ۔ نو نه۔ او که دَ خولې نه ئې راوویست۔ بیائې او خوړ تیرې که۔ نو که دَ چڼې ددانې نه کم وي او که زیات وي۔ او که برابر وي۔ په هر حال کښې ئې روژه ماته شوه۔

**مسئله**[4] :- په خوشبو په تیز بو په ولو سره روژه نه ماتیږي۔ خو هله چه لوګې ترو نکې نه وي۔ لکه ګل۔ عطر۔ عرقِ ګلاب وغیره۔ مکروه کیږي پرې هم نه۔

**روژه چه پرې ماتیږي او قضا لازمیږي دَ هغې بیان**

**مسئله**[5] :- که خوله ئې کنګالوله۔ او روژه ورته یاده وه۔ او په غلطئې ئې اوبه حلق ته لاړې۔ نو روژه ئې ماته شوه۔ قضا لازمه ده۔

**مسئله**[6] :- ورځ دَ رمضان وه۔ او نیت ئې دَ روژې نه وُ کړې۔ او ټوله ورځ ئې په شان دَ روژه دار اووُ لیسته۔ نو روژه ئې نه ده شوې۔ قضا پرې لازمه شوه۔ داسې که دَ روژې نیت ئې نه وُ کړې۔ او دَ ورځې ئې خوړل سکل۔ یا نیت د روژې ئې دَ شپې

---

[1] شرح التنویر ۱۲ [2] شرح الهدایه ۱۲ [3] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [4] درمختار و فتح القدیر ۱۲
[5] ردالمحتار ۱۲ [6] مبسوط ۱۲ [7] هدایه و شامی ۱۲

نه وُکړے۔ دَ صبح صادق ختونه پس ئے نیت وکړ۔ لیکن بیائے روژه ماته کړه۔ نو په دے صورت کښې صرف قضا لازمه ده۔

مسئله[1]:۔ دا خیال دے نه کوی چه په رمضان کښې به دَ ورځے خورم سکم۔ نیت د روژے به دَ شپے نه نکوم۔ نو کفاره به را باندے نه راځی۔ ځکه چه دَ رمضان روژه په هر عاقل بالغ مسلمان باندے فرض ده۔ که بلا عذره ئے قصداً وشهرةً روژے خوړلے۔ نو حکم ئے دا دے چه قتل دے کړے شی۔

بلکه داچه په حدیث شریف کښې راغلی دی۔ چه دَ رمضان یوه روژه که چاپریخوده نو که ټول عمر نفلی روژے ونیسی۔ هغه به نه شی پوره کیدے۔ یعنے دَ رمضان دهغه روژے فضیلت به نشی حاصلیدے۔

مسئله[2]:۔ که دَ سر یا دَ کیډے په زخم کښې ئے دارو واچول۔ او هغه دماغ یا کیډے ته ورسیدل۔ نو روژه ئے ماته شوه۔ کنی نو نه۔ اوکه معلومه نه وه چه رسیدلی دی اوکه نه۔ نو که دارو وچ وو۔ نه ماتیږی۔ اوکه بهیدونکی وو۔ ماته به شی۔

مسئله[3]:۔ که دَ پوزے د نسوار و په شان ئے څه دارو په پوزه را خکودل۔ یا ئے په غوږ کښې تیل وڅڅولے شو۔ یا ئے دَ جلاب دَ پاره پچکاری وکړے شوه۔ نو روژه ئے ماته شوه۔ صرف قضا لازمه ده۔

مسئله[4]:۔ که دَ روژے په حالت کښې ئے اُومه غوښه اوخوړه۔ نو قضا او کفاره به دواړه شته۔ اوکه بدبوداره غوښه ئے اوخوړه هم دا حکم دے۔ البته که ډیره بیکاره شوے وه۔ چه چینجی په کښې هم شوی وُو۔ بیا به صرف قضا ده۔ کفاره به نشته۔

مسئله[5]:۔ روژه دار که کیڼے یا کودرے یا پمبته۔ یا شیشه۔ یا وسپنه۔ یا خاوره (بلا عادت) یا مالوچ۔ یا کاغذ۔ یا کچه وڼه یا بل داسے شے تیر کړ۔ چه هغه د دارو یا دَ غذا وغیره دَ پاره خلق نه خوری نو صرف قضا به لازمه ده۔ روژه ئے ماته شوه۔

مسئله[6]:۔ که وچ بادام ئے ژوندے تیر که سره دَ پوستکی۔ یا وچه چنجے ژوندئے یعنے سره دَ پوستکی بے ماتولو نو روژه ئے ماته شوه۔ صرف قضا به لازمه ده۔ اوکه ډیره ئے جونډی تیره کړه۔ قضا او کفاره به دواړه شته۔

---

[1] درمختار و ردالمحتار ۱۲ [2] هندیه و فتح القدیر ۱۲ [3] شرح الهدایه ۱۲ [4] خلاصة الفتاوی و ردالمحتار ۱۲ [5] خلاصة الفتاوی وشامی ۱۲ [6] شامی خلاصة ۱۲

**مسئله[۱]** :- که چا ډېل لاړے تیرے کړے - یا څلے هغه لاړے چه مینه ئے تو کلے وے - نو روژه ئے ماته شوه - قضا به ئے راوړی - البته که دَ خپل معشوق دخولے لاړے ئے تیرے کړے - نو قضا او کفاره به دواړه شته -

**مسئله[۲]** :- که دَ روژه دار خوله وینے شوه - او وینه ئے دَ تو کانړو سره تیره کړه - نو په دے کښں درے صورته دی - که وینه ئے دَ تو کانړو سره برابره وه - یا تے زیاته وه - نو روژه ماته شوه - قضا به ئے راوړی - او که وینه تے کمه وه - نو نه ده ماته شوے - لیکن که په حلق کښں ئے دَ وینے خوند معلوم شه - په دے صورت کښں به هم ماته شی -

**مسئله[۳]** :- باران وریده یا ګلئے - دروژه دار حلق ته څاڅکی بے اختیاره لاړل - یا دانه دَ ګلئے - نو روژه ئے ماته شوه - قضا پے لازمه شوه -

**مسئله[۴]** :- که روژه دار اُوده وُ - دَ هغه غزیب په حلق کښں چا اوبه واچوے نو روژه ئے ماته شوه - قضا پے لازمه ده -

**مسئله[۵]** :- که لوبان یا عود یا بل داسے شے ئے ځان ته کیخود - چه لوګے لړونکے وُ - او روژه ورته یاده وه - او قصداً ئے بخور بیناوُ - نو روژه ئے ماته شوه قضا پے شته -

**مسئله[۶]** :- که مثلاً یو سړی دَ رمضان په وړومبئ ورځ روژه ونیوله - لیکن په دغه ورځ بے هوشه شه - نو هرڅو ورځے چه بے هوشه وی - په ده باندے دَ اول تاریخ دَ روژے نه سوا دَ بے هو شئ دَ ورځو دَ روژو قضا واجبه ده - ځکه چه نیت نشته - هاں که دَ اول تاریخ هغه روژه ئے په څه وجه قضا شوے وی - نو دَ هغے قضا پے هم شته -

**مسئله[۷]** :- په چا باندے چه دروژے میاشت دَ اول نه دَ آخرے پورے په حالت دَ لیونتوب کښں تیر شوے وی - بیا ورسته جوړ شوے وی - په هغه دَ دغه رمضان دَ یوے روژے قضا هم نشته - او که په دغه رمضان کښں دننه دننه بیا دَ لیونتوب نه بنه شوے وُ - مثلاً دَ رمضان په اولو شلو ورځو کښں لیونے وُ - بیا سم شوے وُ - نو ددغه رمضان دَ اولو شلو روژو قضا پے شته -

**مسئله** :- فرض که چه دَ روژے میاشت وه - لس ورځے تیرے شوے - بیا

---

[۱] هندیه وشامی ۱۲ [۲] رد المحتار ۱۲ [۳] درمختار وخلاصة الفتاوی ۱۲ [۴] درورد ۱۲ [۵] درور ۱۲ [۶] شرح البدایه اعنی الهدایه ۱۲ [۷] شرح البدایه ورد المحتار ۱۲ [۸] مبسوط ۱۲

زید چه بینه عاقل بالغ وُ۔ لیونے شه۔ اودا لیونتوب ئے ز خلورو کالو پورے باقی وُ۔ بیا دپنځم کال د روژے میاشت چه شروع شوه۔ او پنځلس ورځے تیرے شوے زید جوړ شو لیونتوب ئے لاړ۔ نو په زید باندے د دے پنځلسو تیرو شوو روژو قضا هم واجب ده۔ او په کوم رمضان کښ چه لیونے شوے وُ۔ د هغے شلو قضا پے هم شته۔ یعنے دا به نه وائیو چه د لیونتوب په وجه دغه روژے په ده لوے اونشته۔ البته د دے دوا ړو رمضانونو په مینځکښ چه څه میاشتے د روژے تیرے شوے دی۔ د هغے قضا پے نشته۔

## مسئله

مسئله :- که د روژه دارقے وشه۔ او روژه ورته یاده وه۔ نو په دے کښ ډیر صورتونه دی۔ یا به په خپله شوے وی یعنے بے اختیاره۔ یا به ده کړے وی۔ یعنے په خپل اختیار سره۔ نو که هغه وی۔ او که دا۔ یا به په ډکه خوله وی یا به کم۔ نو که قے ئے په خپل اختیار وکه۔ او وه په ډکه خوله۔ نو روژه ئے ماته شوه۔ قضا لازمه ده۔ او که کم وُ۔ نو نه۔ او که قے بے اختیاره شوے وی۔ نو روژه به هله ماتیږی۔ چه په ډکه خوله وی۔ او قصداً ئے تیره کی۔ کنی نو نه۔

د آسانئے دپاره دولس واړه صورتونه په لاندے نقشه کښ[۲] سره د کیفیت او سره د اختلافِ اقوال نه درج دی۔

| نمبر | دقی کیفیت | حکم په نیزد امام ابو یوسف رح | حکم په نیزد امام محمد رح | صحیح قول |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | قے ئے وُشه په ډکه خوله۔ او وُئے غورزاوُ | روژه پے نه ماتیږی | روژه پے ماتیږی | قول د امام محمد صاحب رح |
| ۲ | قے ئے وشه په ډکه خوله۔ او تیره ئے شه | ماتیږی | نه ماتیږی | |
| ۳ | قے ئے وشه په ډکه خوله۔ او تیره ئے که لږ یا ډیر | ماتیږی | ماتیږی | |
| ۴ | قے ئے وشه کم د ډکے خولے نه۔ او وئے غورزاوُ | نه ماتیږی | نه ماتیږی | |
| ۵ | قے ئے وشه کم د ډکے خولے نه۔ او تیره ئے شه | نه ماتیږی | نه ماتیږی | |
| ۶ | قے ئے وشه کم د ډکے خولے نه۔ او تیره ئے که | نه ماتیږی | ماتیږی | قول د امام ابو یوسف رح |
| ۷ | قے ئے وکه په ډکه خوله۔ او وئے غورزاوُ | ماتیږی | ماتیږی | |
| ۸ | قے ئے وکه په ډکه خوله او تیره ئے شه لږ یا ډیر | ماتیږی | ماتیږی | |
| ۹ | قے ئے وکه په ډکه خوله او تیره ئے که لږ یا ډیر | ماتیږی | ماتیږی | |

[۱] شامی و فتح القدیر ۱۲ [۲] شرح الملتقیٰ ۱۲

| ۱۰ | قے ئے وکه کم د ډکے خولے نه او دے عوږ ئے اوه | نه ماتیږی | نه ماتیږی | قول د امام ابو یوسف صاحبؒ دے لیکن ظاهر روایت قول د امام محمدؒ دے |
|---|---|---|---|---|
| ۱۱ | قے ئے وکه کم د ډکے خولے نه او ننیر ئے شه | نه ماتیږی | ماتیږی | |
| ۱۲ | قے ئے وکه کم د ډکے خولے نه او تیر ئے که | صحیح قول دا دے چه نه ماتیږی | ماتیږی | ″ |

**مسئله** [1] :- که په هیره ئے څه اوخوړل - یا ئے وسکل - یا ئے جماع وکړه - بیا ئے خیال وکه - چه روژه م ماته شوه - پس قصداً ئے څه اوخوړه - ؤ ئے سکه - نو روژه ئے وس ماته شوه - قضا پے لازمه ده -

**مسئله** [2] :- که د روژه دارے ښځے حیض شروع شه - یا نفاس - نو روژه ئے ماته شوه - د کومے پورے چه نه وی پاکه شوے - روژه ئے صحیح نه ده - او د دغه ورځو د روژو قضا پے شته - او د مونځونو پے نشته -

**تنبیه** [3] :- په کوم سبب سره چه روژه ماتیږی - او صرف قضا لازمیږی که هغه ئے دوه درے ځله قصداً او معصیةً وکه - نو په دے صورت کښ به زجراً د کفارے حکم وکړے شی -

روژه چه پے ماتیږی - او قضا او کفاره دواړه لازمیږی د هغې بیان

**مسئله** [4] :- د روژے کفاره هله لازمیږی چه عاقل بالغ مقیم مسلمان په رمضان کښ د روژے اداکولو نیت د شپے نه کړے وی - بیا دغه روژه ماته کی - په داسے حال کښ چه دے په دے روژه ماتولو کښ نه خاطی وی - نه مجبور ره کړے شوے وی - او نه ورته څه داسے شرعی عارض پیښ شوے وی چه په هغے سره روژه ماتیږی - یا ماتو لے شی لکه حیض او مرض وغیره - نو که نابالغ روژه ونیوله - بیا ئے ماته کړه - کفاره پے نشته (بلکه په نابالغ ئے قضا هم واجبه نه ده) او دارنګ که مسافر په سفر شرعی په حالت د سفر کښ روژه ونیوله - بیا ئے ماته کړه - نو کفاره پے نشته - صرف قضا ده پے - او که مقیم انسان د روژے نیت د شپے نه وُکړے - د صبح صادق ختو نه پس ئے وکه - بیا ئے روژه ماته کړه - نو کفاره پے نشته - او که نیت ئے د شپے کړے وُ - د ورځے ئے په غلطئ سره حلق ته اوبه لاړے - په دے ئے روژه ماته شوه یا په شرعی مجبورئ سره چا مجبور که - پس روژه ئے ماته کړه - یا سخت ناجوړه شه - په دے سبب ئے روژه ماته کړه - یا ئے بیه قصداً روژه ماته کړه - بیا په دغه ورځ

[1] در مختار و هندیه ۱۲ [2] هدایه ۱۲ [3] در مختار و رد المختار ۱۲ [4] در مختار و رد المختار ۱۲

سخت ناجوړه شه مثلاً - یا ښځې مینه قصداً روژه ماته کړه - بیا ئے په دغه ورځ حیض یا نفاس شروع شه - نو په دے ټولو صورتونو کښې قضالازمه ده - اوکفاره لازمه نه ده - اودَ رمضان دَ ادا یئے روژے نه سوابله روژه که چا ونیوه - بیائے ماته کړه - نوهم کفاره نه واجبیږی -

**مسئله** :- که روژه دار قصداً بلا عذره څه داسے شے اوخوړو - یا وُسکه چه دغه خوړے کیده غذاءً یا دواءً یالذةً یاوُ معین دَ غذا نو روژه ئے ماته شوه - قضا اوکفاره پے دواړه لازم دی -

**مسئله** :- روژه دار که دَ نشے یا دَ څه فایدے په غرض چلم یا سګرټ وغیره وسکه - اولوګے ئے حلق ته لاړو - نو قضا اوکفاره پے دواړه شته -

**مسئله** :- که روژه دار دَ چا غیبت وکه - یا ئے مسواک اوواهه - بیائے دا خیال وُکه چه روژه رم په دے سره ماته شوه - پس قصداً ئے څه اوخوړل یا وسکل نوروژه ئے وس ماته شوه - قضا اوکفاره پے دواړه شته -

**مسئله** :- که دَ روژه دار احتلام وشه - یعنے په خوب کښې شیطان خطاکه په دے سره ئے روژه نه ماتیږی - دارنګ که صرف په نظر یا په فکر سره ئے انزال وشه - هم پے روژه نه ماتیږی -

**مسئله** :- که ږکے یا تارئے مرۓ ته ښیست - اودَ دغے یو سر باهر وُ - نو روژه پے نه ماتیږی - اوکه حلق ته پوره داخل شه نو ماته شوه - دارنګ حال دګوتے غاړے هم دے - نو که ښځے په خپل شرمګاه داخل کښې مالوچ وغیره کیخودل - اودغه په دننه حصه کښې ټول پټ شه - روژه ئے ماته شوه - ګنی نو نه -

**مسئله** :- که روژه دار دَ ورځے په هیره سره جماع کوله - بیا چه ئے کوم وخت یاد شو - سمدستی جدا شه - یا دَ صبا ختو نه مینه لګیا وُ - بیا دَ شپے دختمیدو سره تے فوراً جدا شه - نو په دواړو صورتونو کښې ئے روژه په ځائے ده - نه ده ماته اګرکه پس دَ جدا یئے نه انزال هم شوے وی - ځکه چه دغه انزال به دَ احتلام په شان ګڼلے شی -

**مسئله** :- روژه دار سړی که دَ خپلو وړو بولو دَ ځائے په سوری کښې اوبه

---

ك درمختار ورد المحتار ۱۲ ك درمختار ورد المحتار ۱۲ ك خانیه هندیه خلاصة الفتاوی ۱۲
ك درمختار وخانیه ۱۲ ك درمختار ورد المحتار ۱۲ ك درمختار ورد المحتار ۱۲ ك شرح التنویر رد المحتار ۱۲

یا تیل وغیره وڅښل۔ روژه ئے پے نه ماتیږی۔ اوکه ښځے ځان سره په فرج داخل کښې داسے وکړه۔ ماته به شی۔ نو قضا پے لازمه ده۔ نه کفاره۔

**مسئله**[۱] :- که د روژه دار د لوېو بولو په ځائے کښې یا روژه دارے ښځے د دېرو بولو په ځائے کښې لمده ګوته ورننیستے شوه۔ نو روژه ئے پے ماته شوه۔ قضا لازمه ده۔ او په وچه ګوته سره روژه نه ماتیږی۔ هاں که بیس د دا ایستلو نه دوباره ورننیستے شوه۔ ماته به شی۔ خو د روژے ماتیدلو دا بیان هله دے که ګوته دننه ځائے د پچکاری نه یا فرج داخل ته رسیدلی وی۔

**مسئله**[۲] :- که د روژه دار اندرونی حصه رکوے نه چه په پښتو کښې سوېره و پیلے شی۔) راووته۔ هغه ئے واپخله۔ بیا دغه شان ودریده۔ نو روژه ئے ماته شوه قضا پے لازمه ده۔ او که پس د اپخلو نه ئے وچه کړے وی۔ هله ودریدلے وی نو روژه ئے نه ده ماته۔

**مسئله**[۳] :- که روژه دارے ښځے سره په جبر سره مجامعت وکړے شه۔ یا د اُودے ښځے سره۔ نو په دواړو صورتونو کښې په ښځه صرف قضا لازمه ده۔ او که د لیونئ ښځے سره جماع وکړے شوه۔ د هغے هم دا حکم دے۔ یعنی که ښځے روژه نیولے ده۔ بیا په دغه ورځ دا لیونئ شوه۔ په داسے حال کښې ورسره مجامعت وکړے شه نو بیا که لیونتوب ئے چرے زائل شه۔ نو د دغه ورځ د روژے قضا به داوړی۔ کفاره بے نشته۔

**مسئله**[۴] :- معاذ الله که روژه دار سړی جماع وکړه د مړے ښځے سره۔ یا د څاروی سره یا د و دسره وړے جینئ سره چه مشتهاة نه وه۔ یا ئے جلق[۵] اووا هه۔ یا ئے ښځه هسے ښکل کړه۔ یا ئے ورسره معانقه وکړه۔ یا ئے ورسره جماع وکړه۔ خو د دېرو بولو یا د لوېو بولو په ځائے کښې نه۔ بلکه په څه بله طریقه۔ نو د دے ټولو صورتونو حکم دا دے چه انزال که شوے وی۔ نو روژه ماته شوه۔ صرف قضا پے لازمه ده۔ او که نه وی شوے نو روژه ئے نه ده ماته شوے۔ باقی د ګناه خبره بله ده۔

**مسئله**[۶] :- روژه دار که مشتهی انسان سره شانه یا څخه نه جماع وکړه۔ یا ورسره وکړے شوه۔ نو برابره خبره ده چه انزال شوے وی۔ او که نه۔ د حشفے په داخلیدو سره پے قضا او کفاره دواړه لازمیږی۔

---

[۱] درمختار ورد المحتار ۱۲ [۲] فتح القدیر ورد المحتار ۱۲ [۳] هدایه ۱۲ [۴،۵] درمختار ورد المحتار ۱۲ [۶] جلق موټکے نه وائی ۱۲

مسئله[1] :- روژه دار که د لیونتوب په حالت کښې سره جماع وکړه - نو په دې صورت کښې هم په سړي قضا او کفاره دواړه لازمیږي - یعنې دا نه چه ښځه لیونۍ ده - نو په سړي به صرف قضا راځي -

مسئله[2] :- که عاقلې روژه دارې ښځې وړوکي هلک یا لیوني په ځان قادر که - یعنې خاص کارې پې وکه - نو په دې صورت کښې اختلاف دې چه په ښځه قضا او کفاره دواړه راځي - او که صرف قضا - خو صحیح خبره دا ده - چه دواړه پې لازمیږي -

مسئله[3] :- که شیطان په خوب کښې خطا که - یا ئې بې اختیاره قې وشه - یا ئې صرف په نظر سره انزال وشه - بیا ئې دا خیال وکه چه روژه رم ماته شوه قصداً ئې څه او خواړه - یا وسکه - نو روژه ئې وس ماته شوه - پس که دا ورته معلومه وه - چه په احتلام سره او په مذکوره قي او انزال سره روژه نه ماتیږي نو قضا او کفاره پې دواړه شته - کنې نو صرف قضا ده پې -

او په بعض[4] کتابو نو کښې ئې داوړي دي - چه په دې صورت کښې هم قضا او کفاره دواړه شته -

مسئله[5] :- د روژې په حالت کښې خپله ښځه ښکلولې شي - روژه پې نه مکروه کیږي - خو هله که په ځان ئې د جماع نه د بچ کیدلو اعتماد وُ - او که اعتماد ئې نه وُ - نو بیا مکروه دي - او د هغې شونډې په خوله کښې نیول او په لغړه ورسره یو ځائې کیدل په هر حالت کښې مکروه دي - یعنې برابره خبره ده چه اعتماد ئې په ځان وي - او که نه - او که جماع ئې وکړه - نو قضا او کفاره به پې دواړه راشي - لکه چه قاعده ده

په کومو څیزونو چه روژه مکروه کیږي د هغې بیان

مسئله[6] :- که د روژې په حالت کښې ئې څه شې بې ضرورته وڅاکه - بیا ئې بالکل تو که - چه یوه ذره ئې حلق نه لا نړه - نو روژه پې نه ماتیږي - خو مکروه کیږي - البته که ضرورت وُ - مثلاً د ښځې یره وه - چه د انګولې په مالګه کښې که څه فرق راغې - نو خاوند به رم پوزې له راولي - تُند مزاج دې - نو څکلې شي - یعنې په ژبه دې وګوري - بیا دې بالکل توکی - دا رنګ که د بچي د پاره د نوړې جرېلو ضرورت وُ - او د بوزه خاوند څوک

له اشباه وشامی ۱۲ ، ٢ هندیه وشامی ۱۲ ، ٣ ردالمحتار ۱۲ ، ٤ خانیه وخلاصة الفتاوی ۱۲

٥ هندیه ودر وشامی ۱۲ ، ٦ هندیه ودرمختار وردالمحتار ۱۲

وُنه - نو ښځه دا هم کولے شی - خو احتیاط دے کړی چه حلق ته ئے تیر نشی -

**مسئله** :- دَ خو شبوئی په بینولو سره کوم چه لوګے لرونکے نوی - او په تیل لګولو سره او په رنجو پورے کولو سره په روژه کښی کراهت نه راځی - دارنګ په مسواک وهلو سره هم روژه نه مکروه کیږی - برابره خبره ده چه دَ زوال نه مینه وی - اوکه ورستو - او مسواک وچ وی اوکه لوند -

**مسئله** :- دامام ابویوسف صاحبؒ قول دے - او مفتیٰ به دے چه دَ ګرمهٔ دفعه کولو دَپاره لمبل - لوند زړوکے په ځان ایخودل - په سر اوبه اچول - خوله او پوزه کنګالول په روژه کښی هیڅ کراهت نه راولی -

**مسئله** :- په روژه کښی رګ وهل جائز دی - بلا کراهته - البته که د دومره ضعف پیدا کولو یره وه - چه د روژے ماتولو نوبت به راولی بیا مکروه دی -

**مسئله** :- د روژه دار دَ پاره په خوله کنګالولو کښی مبالغه کول - یعنے خوله دَ اوبو سره ډکول او دَ ډیر ساعت پورے ئے ساتل مکروه دی - داسے نه چه اوبه ئے تیرے شی - دارنګ واځی چه په اوبو کښی باد پریخودل او په استنجا کښی ډیره زیاته مبالغه کول ورله هم مکروه دی -

**د پیشمنی او دَ روژه ماتی بیان**

په حدیث شریف کښی راغلی دی چه پیشمنے کوئ - په دے کښی برکت دے - لهٰذا که خوانه ئے نه کیږی هم دے پیشمنے ماله نه څه خوړل سکل وکی -

**مسئله** :- په پیشمنی کښی تاخیر غوره دے - خو د صبح صادق نه مینه مینه فارغ کیدل ضروری دی - او په افطار کولو کښی تعجیل غوره دے - یعنے په روژه ماتولو کښی جلدی غوره ده - نو دَ نور پریوتو او دَ شپے ختو نه پس دَ انتظار نه کوی - فوراً دے روژه ماته کی - په دے باب کښی هم حدیثونه راغلی دی -

**مسئله** :- که دَ پیشمنی په وقت ئے دَ صبح صادق ختو شک شه - نو پیشمنے دے بس کی - دارنګ که دَ روژه ماتولو په وقت ئے دَ نور پریوتو کښی شک وُ - نو روژه ماتول ورله جائز نه دی -

---

۱ درمختار و شامی ۱۲ ۲ شامی ۱۲ ۳ هندیه و درمختار ۱۲ ۴ عالمګیری ۱۲ ۵ بخاری شریف ۱۲
۶ هدایه ۱۲

فائده :- که چا پیشمئے وخوړ په دا سے حال کښې چه یقیني ورته معلومه نه ؤ چه شپه پاتے ده - اوکه نه - یائے روژه ماته کړه په داسے حال کښې چه په طورِ یقین ورته معلومه نه وه - چه نور پریوتے دے - اوکه نه - نو په دے کښې ډیر احتمالات دی - ځکه چه دَ پیشمئ کولو یا دَ روژے ماتولو په وقت به ئے یا غالب گمان وی چه وس شپه ده - یا به ئے غالب گمان چه وس ورځ ده - یا بهٔ شک وی - یعنے دواړه جانبه به ئے په خیال کښې برابر وی - او په هرصورت کښې به ورته یا وروستو معلومه شوی وی - چه په هغه وقت شپه ده - یا به معلومه شوی وی چه ورځ ده یا به ئے شک پاتے شوے وی - هیڅ به ورته نه وی معلوم شوی - نو دا ټول اتلس صورتونه شول - نهٔه دَ پیښمئ جانب ته - او نهٔه دَ روژه ماتی - دَ دے ټولو صورتونو حکم لاندے په تفصیل سره ذکر کیږی۔

مسئله :- که دپیشمئ کولو په وقت ئے غالب گمان ؤ - چه شپه لا پاتے ده - او وروستو هم معلومه شوه چه واقعی هغه وقت شپه پاتے وه - یا وروستو ورته هیڅ پته ونه لګیده - نو په دواړو صورتونو کښې ئے روژه شوے ده - قضا پے نشته - اوکه وروستو دا معلومه شوه چه هغه وخت صبا ختلے ؤ - ورځ شوے وه نو روژه نه ده شوے - صرف قضا پے لازمه ده۔

مسئله :- دشک هم دغه حکم دے - یعنے دپیشمئ کولو په وقت ئے که شک ؤ - چه اے شپه پاتے ده - اوکه نه - او وروستو معلومه شوه چه شپه پاتے وه - یا هیڅ معلوم نه شوه - نو روژه ئے صحیح ده - قضا پے لازمه نه ده - (خو دَ شک کار ښه نه دے) اوکه معلومه شوه چه هغه وقت صبا ختلے ؤ - نو قضا پے شته -

مسئله :- که دپیشمئ کولو په وقت ئے گمان ؤ - چه صبا ختلے - او بیا هم داظاهره شوه - نو صرف قضا پے لازمه ده - اوکه هیڅ معلومه نه شوه - نو هم قضا ښه ده - او که معلومه شوه چه هغه وقت لا صبا نه ؤ ختلے - بلکه شپه وه - نو روژه ئے شوه قضا پے نشته -

مسئله :- که د روژے ماتولو په وقت کښې ئے غالب گمان ؤ چه نور پریوتے او بیا هم معلومه شوه - چه واقعی نور پریوتے ؤ - یا هیڅ معلوم نه شو - نو په دواړو صورتونو کښې ئے روژه شوے ده - اوکه معلومه شوه چه په هغه وقت کښې نور

ـــــــــــــــــــــــ

له شامی ۱۲ لله در مختار ورد المحتار ۱۲

نه ؤ پریوتے ۔ نو صرف قضا پے لازمه ده ۔

**مسئله**[۱۳] :- که په نور پریوتو کښں ئے شک ؤ ۔ او روژه ئے ماته کړه ۔ نو که بیا معلومه شوه ۔ چه نور پریوتے ؤ ۔ نو روژه ئے شوے ده ۔ قضا پے نشته ۔ او که معلومه[۱۴] شوه چه نور لا نه ؤ پریوتے ۔ نو قضا او کفاره پے دواړه شته ۔ او که هیڅ معلومه[۱۵] نه شوه نو صرف قضا پے لازمه ده ۔ او په یو روایت کښں پے کفاره هم شته ۔

**مسئله** :- که غالب گمان ئے دا ؤ ۔ چه نور لا نه دے پریوتے ۔ او روژه ئے ماته کړه ۔ نو که بیا[۱۶] معلومه شوه چه نور پریوتے ؤ نو روژه شوے ده ۔ او که معلومه[۱۷] شوه چه لا نه ؤ پریوتے ۔ یا هیڅ معلومه[۱۸] نه شوه ۔ نو په دے دواړو صورتونو کښں پے قضا او کفاره دواړه شته ۔ خلاصه خبره دا شوه چه د مذکوره اتلس[۱۸] صورتونو نه په لس[۱۰] صورتونو کښں نه قضا شته ۔ نه کفاره ۔ او په څلورو[۴] کښں صرف قضا لازمیږي او په څلورو[۴] کښں قضا او کفاره دواړه ۔

**مسئله**[۱۹] :- که د شپے په آخر کښں دوؤ تنو شاهدی وکړه چه صبح صادق ختلے دے ۔ او نورو دوؤ تنو شاهدی وکړه چه لا نه دے ختلے ۔ او سړی د دے دویم شهادت په وجه پیشمے وکه ۔ بیا ورستو معلومه شوه چه هغه وقت صبا ختلے ؤ ۔ نو قضا او کفاره پے دواړه شته ۔ او که د ورځے په آخر کښں دوؤ تنو شاهدی وکړه چه نور پریوتے دے ۔ او نورو دوؤ سړو شاهدی وکړه چه لا نه دے پریوتے ۔ او سړی د اول شهادت په وجه روژه ماته کړه ۔ او بیا معلومه شوه چه هغه وقت لا نور نو پریوتے نو قضا پے شته او کفاره پے نشته ۔ وجه د فرق دا ده ۔ چه کوم شهادت په نشتوالی باندے وی ۔ دا مقابله نشی کولے د هغه شهادت سره چه په شته والی وی ۔

**مسئله**[۲۰] :- نبی علیه السلام به روژه اکثر په کهجورو ماتوله ۔ او که کهجوره به نه وه ۔ نو په چهواره ۔ او که دا به هم نه وه ۔ نو د اوبو نه به ئے یو څو گوټونه نوش اوفرمائیل ۔

**مسئله**[۲۱] :- د روژے ماتولو په وقت دا دعا ویل غوره دی ۔ اَللّٰهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَبِكَ اٰمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَعَلٰى رِزْقِكَ اَفْطَرْتُ وَبِصَوْمِ الْغَدِ مِنْ رَمَضَانَ نَوَيْتُ فَاغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ ۔ که دا دعا ئے پوره ولوسته نو په دے کښں د صبا د روژے نیت هم راغے ۔ نو که صبا له اختر ؤ ۔ نو دے

---

له خانیه ۔ هندیه ۔ خلاصة الفتاوی ۔ شامی ۱۲ ته ترمذی وابوداؤد شریفین ۱۲ ک هندیه ۱۲

د روژې ماتولو په وقت په مذکوره دعاګانو کښې داخله نه دائ ـ وَبِصَوْمِ الْغَدِ مِنْ رَمَضَانَ نَوَيْتُ ـ

**مسئله** :ـ روژه دار له روژه ماتې ورکول ډیره د ثواب خبره ده ـ په حدیث شریف کښې راغلی دی ـ چه چا روژه دار له روژه ماتې ورکه ـ یائې غازی له سامان مهیّا که ـ نو هغه ته به د دغه روژه دار او د دغه غازی د ثواب موره ثواب ملاویږی ـ په دے حدیث کښې روژه دار د غازی سره مثل کړل او د غازی نه ئې مینه ذکر کول اشاره ده جهادِ اکبر ته ـ او د هغې فضیلت ته ـ پټه نه ده په خاوندانو د عقل باندے ـ

**فائده** :ـ څومره پوهه به کښې چه پیشنې لفظ مشهور دے ـ معلومیږی چه دا په اصل کښې پیشِ منعه وُ ـ په پښتو کښې د اقسم لوړ الفاظ هم شته چه د هغې اصلی شکل د کثرتِ استعمال په وجه بدل شوے دے ـ لکه "تپه" په اصل کښې طائفه وه ـ بنیادم په اصل کښې "بنی آدم" وُ ـ تپوس په اصل کښې تفحص وُ ـ "اوبه" په اصل آب وُ ـ نارَه په اصل کښې نعره ـ وغیره وغیره ـ

دروژے نه نیولو عوارض

**مسئله** :ـ څوک چه مسافر وی په سفرِ شرعی سره هغه که روژه نه نیسی نو خیر دے ـ رخصت ور له شته ـ بیا به ئې قضا راوړی ـ که په سفر کښې ورته بنه آرام او راحت وی ـ هم ورته د روژے نه نیولو اجازت دے ـ لیکن چه تکلیف ورته نه وی وس نیول غوره دی ـ

**مسئله** :ـ خدائے دے نکړی که مسافر په سفرِ شرعی د څه ګناه د پاره سفر کاوُ ـ او مباشت د روژے وه ـ نو ده ته هم د روژے نه نیولو اجازت شته نُستو دے قضا راوړی ـ البته د ګناه خبره جدا ده ـ

**مسئله** :ـ که روژه دار ته سفر پیښ شه ـ یعنے مقیم وُ ـ روژه ئې د رمضان نیوے وه ـ بیا په دغه ورځ مسافر شه په سفرِ شرعی سره ـ نو د دغه ورځ روژه ماتول ور له جائز نه دی ـ لیکن که ماته ئې کړه ـ نو صرف قضا پے لازمه ده ـ

**مسئله** :ـ که روژه دار د سفر په نیت روان شه ـ بیائې یاد شو چه څما خو په کور کښې فلانے شے هیر شوے دے ـ د هغې د اغستو د پاره واپس کورته راغے ـ دلته ئې روژه ماته کړه ـ نو په دے صورت کښې پے قضا او کفاره دواړه لازم دی ـ

---

ل رواه محی السنة وقال صحیح ۱۲ ؎ درمختار وشامی ۱۲ ؎ شرح التنویر ۱۲ ؎ شرح التنویر ۱۲ ؎ درمختار وشامی ۱۲

**مسئله** :- مسافر که په یو ځائے کښې د پنځلسو شپو ورځو نه د کم حصار[1] نیت وکه۔ نو د قاعدے سره مطابق ورله وس هم د روژے نه نیولو رخصت شته لیکن نیول ورله ښه دی۔ او که د پنځلسو شپو ورځو یا د دے نه زیات ئے د پاتے کیدلو اراده وکړه۔ نو وس دے مقیم شه۔ احکام به پے د مقیم جاری کیږی

**مسئله** :- مسافر که د شپے نیت د روژے کړے وُ۔ چه صبا به فرض روژه نیسم۔ او روژه ئے کړه۔ نو وس ورله د هغے ماتول جائز نه دی۔ او که ماته ئے کړه نو صرف قضا پے لازمه ده۔

**مسئله**[2] :- که د روژے په میاشت کښې د ورځے مسافر مقیم شه۔ یا مریض یا لیونے جوړ شه۔ یا نابالغ ځوانئے ته اورسید۔ یا کافر مسلمان شه یا د کوے ښځے چه حیض یا نفاس وُ۔ هغه پاکه شوه۔ نو د دے ټولو د پاره دا حکم دے چه امساک دے وکی۔ یعنے د ماښام پورے دے ځان په شان د روژه دار وساتی۔ څه خوری سکی دے نه۔

پاتے شوه داخبره چه دا امساک به د دی په حق کښې روژه ګڼړلے شی او که نه۔ نو په دے کښې تفصیل دے۔ تفصیل دا دے چه مسافر او مریض او لیونے که د نصف النهار نه مینه مینه نیت د روژے کړے وُ۔ او د ورځے ئے څه خوړل سکل نه وُ کړی۔ نو د دغه روژه به ئے صحیح شی۔ قضا پے نشته۔

دا رنګ که نابالغ نیت کړے وُ۔ نو د ده د پاره به نفلی شی۔ ځکه چه د دغه ورځ روژه پے نه ده فرض۔ او د باقی درېو د پاره نه نفلی کیږی نه فرض۔ خو د دغه روژے قضا په نو مسلم نشته۔ او په ښځه شته۔ کومه چه د حیض یا د نفاس نه پاکه شوے ده۔

**مسئله**[3] :- مذکوره امساک ځینے والئ چه واجب دے۔ او ځینے والئ مستحب۔ خو صحیح خبره دا ده۔ چه د وقت د احترام په وجه واجب دے۔ او د امساک حکم په مذکوره کسانو پورے خاص نه دے۔ بلکه د چا روژه که په رمضان کښې اتفاقاً ماته شوه۔ یا ئے قصداً هسے ماته کړه۔ یا د شک په ورځ۔ پس د هغے نه چه څه خوړل سکل ئے کړی وُ۔ ثابته شوه چه نن د رمضان اوله ورځ ده۔ لکه چه مخکښې تیر شوی دی۔ نو په دے صورتونو کښې هم د ماښام

---

له ردالمحتار ۱۲ ۲ه درمختار و ردالمحتار ۱۲ ۳ه مجمع الانهر و قاضیخان ۱۲

پورے امساک واجب دے۔ اگرکه دد غه ورځ روژه ئے نه کیږی۔

**مسئله[1]**:۔ مسافر او مریض که په رمضان کښې روژه نه وی نیولی۔ نو دَ دی او دا رنګ کومه ښځه چه په حالت دَ حیض یا د نفاس کښې وی۔ دَ دغې په حق کښې دَ امساک خبره نشته۔

**مسئله[2]**:۔ که مریض ته په روژه نیولو کښې څې فیُ دَ هلاکت یا دَ مرض زیاتیدلو یا دَ مرض اوګدیدلو۔ غرض دا چه دَ غیرِ معمولی تکلیف یره ئے وه۔ نو روژه دے نه نیسی۔ اجازت ورته شته۔ نو بیا به ئے قضا راوړی۔ او څوک چه وس وس دَ مرض نه پاڅیدلے وی۔ دَ دغه هم دا حکم دے۔ دا رنګ که تیمار دار ته د روژے نیولو په صورت کښې د مریض ضایع کیدلو خوف وُ۔ او بل څه انتظام ئے نه شه کولے۔ نو ده ته هم دَ روژے نه نیولو اجازت شته۔ بیا به ئے قضا راوړی۔

**تنبیه**:۔ خوف هغه معتبر دے۔ چه په مستند ذرایع سره د غالب ګمان حده رسیدلے وی۔ مثلاً دَ علاماتو په ذریعه یا دَ مسلمان حاذق ډاکټر یا دحکیم په وینا سره۔

غرض دا دے چه دَ روژے پریخودلو دَ پاره صرف معمولی اندیښنه دَ خوف کافی نه ده۔

**مسئله[3]**:۔ په کومه ښځه پورے چه ئے رودونکے بچے وی۔ او دا ورله تے ورکړی که دَ هغې په ځان یره وه۔ یا په بچی۔ نو هغې له هم رخصت شته چه روژه نه نیسی۔ بیا دے قضا راوړی۔ برابره خبره ده۔ چه د دغه بچی پلار مالدار دی اوکه غریب۔ هاں که پلار ئے مالدار وُ۔ او بچی د بلے ښځے دَ تی رودُ ونه کړی هم نه کاوُ۔ نو په پلار ئے ضروری ده۔ چه څوک دائی ورله اونیسی۔ لیکن که وئے نه نیوه۔ او تے ورله مورورکاوُ۔ نو دَ خوف په صورت کښې دے ته دَ روژے نه نیو اجازت شته۔ بیا به ئے قضا راوړی۔ دا رنګ کومے ښځے چه په اجرت سره تے ورکول ځلے کړی وی۔ او دا رنګ دکومے ښځے چه بچے په کیښه وی۔ دے له هم دَ خوف په صورت کښې اجازت دَ روژے نه نیو شته۔ بیا به ئے قضا راوړی۔

**مسئله[4]**:۔که دَ چا دا خوف وُ۔ چه روژه که نیسم۔ مونځ به په ولاړے ونکړے شم۔ نو دَ دے خوف په بنا ورله روژه پریخودل نه دی جائز۔ که بیائے مونځ په ولاړے نشه کولے۔ په ناسته دے وکی۔

---

[1] شامی ۱۲ [2] درمختار و رد المحتار ۱۲ [3] درمختار و رد المحتار ۱۲ [4] فتح القدیر زیلعی بحر عمدة الرعایة [5] درمختار ۱۲

مسئله :- که غازی ته غالباً اغلباً معلومه وه - چه په روژه کبنی به غزا کیږی - ورله به حتم - نوکه دڅان تکړه کولو په غرض روژه نه نیسی - ورله جائز دی - بیا به ئے قضا راوړی

مسئله :- په شیخ فانی باندے یعنے په هغه معمّر انسان باندے چه ورځ په ورځ په تنزّل کښی وی - او ضعف ئے دے حد ته رسید لے وی - چه نه وس روژه نیولے شی - نه ئے دَ آینده دَ پاره امید وی - دهرے روژے په عوض کښی فدیه ورکول واجب دی - بشرطیکه هغه غنی وی - لیکن که بیا چرته قابل دروژو نیو شه - نو دغه روژو قضا پے شته - نیسی به ئے - اوکه فدیه ئے ورکړی وی - هغه نفلی شوه ثواب ئے وُشه -

درو ژے ماتولو عوارض

مسئله :- دغیر معمولی اکراه په صورت کښی روژه دارله روژه ماتول جائز دی - مثلاً په روژه دار باندے چا داسے جبر وکه - چه هغه که روژه ماته نکړه - نو او به ئے وژنی - یا به ئے ئے لاس خپه وغیره پریکی - نو ده ته اجازت دے - چه ماته ئے کی - خیر دے بیا به ئے قضا راوړی - اوکه ماته ئے نکړه او وُوژلے شه - نو اجر ورله شته - او مسافر او مریض که روژه نیولے وه - او دی په غیر معمولی اکراه سره دروژے په ماتولو مجبوره کړے شو - نو په دی باندے روژه ماتول واجب دی - بیا به ئے قضا راوړی - که ماته ئے نکړه - او اُوژلے شو - نو گنهګار مړه شو - اوکه روژه دار ته دَ روژے نه ماتولو په صورت کښی دمعمولی وهلے کیدلو یا دَ قید کیدلو وغیره خوف وُ - نو دا معمولی جبر دے - روژه ماتول ورله نه دی جائز -

مسئله :- که روژه دار اتفاقاً داسے ناجوړه شه - چه دَ روژے پوره کیدلو په صورت کښی ئے دَهلاکت یا دَ مرض دَزیا تیدلو خوف وُ - نو روژه ماتولے شی دارنګه که څوک مار وچیچه - او ددا دوسکلو ضرورت وُ - نو هم ماتولے شی - بیا به ئے قضا راوړی -

مسئله :- که روژه دار اتفاقاً داسے تنګے شه - یا وګے - چه دَ روژے پوره کولو په صورت کښی ئے خوف وُ دَهلاکت - نو روژه دے ماته کی - بیا به ئے قضا راوړی - اوکه قصداً ئے داسے عمل وکه - چه دروژے ماتولو دا نوبت ئے راوست - نو ګنهګار دے - ځینے وائی چه په دے صورت کښی پے قضا او کفاره دواړه شته -

---

ا شامی ۱۲ ۳ شامی ۱۲ ۳ وسائل الارکان ۱۲ ۵ رد المختار ۱۲

او ځینې والی چه صرف قضا ده پې۔

**فائده** :- ددې باب نه او د تیرشوی باب نه معلومه شوه۔ چه د روژے خوړلو عوارض نهه دی۔ ړوند۔ سفر۔ مرض۔ جهاد۔ غیرمعمولی جبر۔ حمل تے ورکول۔ سختة ولګه۔ سخته تنده۔ لکه چه بیان ئے پوره پوره تیرشوے دے۔

**دکفارے بیان** | درمضان د روژے کفاره داده۔ چه یو مرئے آزادکی۔ که دا نشی کولے۔ نو دوه میاشتې پے درپے دے روژے ونیسی۔ او که دَدے نه هم عاجز وی۔ نو شپیته مسکینان دے ماړه کی۔

**مسئله** :- دَدوؤ میاشتو روژے دے په دے طریقه نیسی۔ چه پے درپے وی۔ یعنی پرله پسے۔ په دے شان سره چه یوه ورځ په کښې هم ناغه نشی۔ نو که پس دشروع کولو نه ئے یکښې یوه ورځ ناغه کړه۔ کفاره نه اداکیږی۔ بیا به ئے دَسره شروع کوی۔ دوه میاشتې به باقاعده مسلسل روژے نیسی۔

**مسئله** :-که د پروسکنئ روژے کفاره ئے په ذمه پاتے ده۔ خیال ئے وکه۔ چه یوه میاشت به دَ شوقدر روژه کم۔ ورپسے درمضان میاشت ده۔ دوه میاشتې به پوره شی۔ کفاره به م اداشی۔ نو دا غلطه خبره ده۔ په دَے نه اداکیږی۔ دارنګ کال کښې چه کومے پنځه روژے منع دی۔ که دکفارے په دوؤ میاشتو کښې هغه شامل کړے شوے۔ یا دیاتے۔ نو هم کفاره نه اداکیږی۔

**مسئله** :- که په مینځ کښې تے دَ سفر یا دمرض یا دنفاس په وجه روژے ناغه شوے۔ نو هم کفاره نه اداکیږی۔ بیا به سره دوه میاشتې پے درپے نیسی۔ هاں که په مینځ کښې دَ حیض په وجه دَ ښځے روژے ناغه شوے۔ نو خیر دے۔ خو سره دپاکیدو دے بیا دَ روژو سلسله روانه ساتی۔ نزدے پورے چه ټولے شپیته پوره شی۔ او په کومه ورځ چه دَ حیض نه پاکه شوه۔ که دَ هغے نه پس ئے یوه ورځ ناغه کړه۔ نو کفاره نه اداکیږی۔ بیا به دَسره شروع کول او دوه میاشتې باقاعده مسلسل پوره کول غواړی۔

**مسئله** :- فرض که چه یوه زړه ښځه ده۔ هغې دکفارے روژے مثلاً دم په اول تاریخ شروع کړے۔ پنځه ورځے ئے ونیوے۔ په شپږ مه ورځ ئے حیض

---

ئه شامی ۱۲ ئه هندیه ۱۲ ئه شامی ۱۲ ئه هندیه درورد ۱۲ ئه البته مسافر که په رمضان کښې دکفارے په نیت سره روژے نیسی نو داکیدے شی۔ خو دَ رمضان قضا به بیا راوړی۔ او دارنګ دمریض دے خو په یو روایت کښې ۱۲ منه ئه درمختار وشامی ۱۲ ئه درورد ۱۲

شروع شه - پنځه ورځې وُ - بیا پاکه شوه - په یولسمه ورځ ئې بیا روژه کړه - پې درپې روژې ئې نیولې - په دویمه میاشت کښې ئې دحیض په دغه نیټه حیض و نه شه - بلکه دا آیئسه شوه - (آیئسه هغه ښځې ته وائې - چه د هغې حیض دعمر په وجه بند شوې وی بیا نه کیږی) نو دې ښځې چه دحیض نه مینه پنځه روژې نیولې وې - هغه په کفاره کښې منظور نه دی - کفاره به ئې هله پوره کیږی - چه د هغه حیض دختمیدو نه پس ئې دوه میاشتې مسلسل روژې پوره شی۔

**مسئله** :- که د قمری میاشتې د اول تاریخ نه کفارې روژې شروع کړې وې او مسلسل ئې دوه میاشتې ونیوې - نو کفاره اداشوه - برابره خبره ده چه دواړه میاشتې د دیرش دیرش وی - او که د یو کم دیرش وی - او که یوه د پوره دیرش - بله د یو کم - او که روژه ئې د میاشتې د مینځ نه شروع کړې وه - یا اول تاریخ نه وُ منعین - نو شپیته روژې دې پوره کی۔

**مسئله** :- که د دې دوؤ میاشتو په دوران کښې ئې یوه ورځ په هیره سره څه اوخوړل یاو سکل - یائې په هیره سره جماع وکړه - نو چونکه په هیره روژه نه ماتیږی - په کفاره کښې څه نقصان نه راځی۔

**مسئله** :- په چا باندې چه د رمضان د روژې کفاره واجب وی - که د هغه د روژو نیولو طاقت نه وی - نو شپیته مسکینان دې دوه وخته په کیدو ماړه کی - یعنې صبا بیګا - او که دې لرې اناج ورکه کچه - نو هم جائزه ده - خو هر یوله دې دصدقه فطر په اندازه ورکی - که د دې نه کم ورکه - کفاره نه اداکیږی - او که شپیتو مسکینانو لرې د اناج په ځائې د هغې قیمت ورکه - دا هم جائیز دی - او مصرف ئې په شان د مصرف د صدقه فطر دې۔

**مسئله** :- کوم شپیته مسکینان چه طعام له راولی - دا ضروری ده - چه په هغوئ کښې څوک ډیر د ډوکې یا د مخکښې نه موړه نه وی - که وُ - نو د هغه په ځائې بل وګړې موړول ضروری دی۔

**مسئله** :- که ډوډئ وړته د غنمو یخوده - نو د هغې سره انګورې وغیره ایخودل مستحب دی - او که ډوډئ د غنمو نه سوا د بل څه اناج ده - نو بیا ورسره پیتی یا بل څه ایخودل ضروری دی - چه ډوډئ پورې اوخوړلې شی۔

ـــــــــــــــــــ

له درودره ۱۲ ثه شرح التنویر ورد المختار ۱۲ سه هندیه ودرودره ۱۲ ئه هندیه وشامی ۱۲ ثه هندیه وشامی ۱۲

مسئله :- دا هم جائز دی - چه دیرش مسکینانو له کچه اناج ورکی - او دیرش سحراو ماښام طعام له راولی - ماړه ئې کی - دا رنګ شپیته مسکینان یو وقت ماړول - او د بل وقت دَ پاره ورله قیمت ورکول هم جائز دی - او که یو مسکین ئې د شپیتو ورځو پورې صبا بیګاه ډوډئ له راوست - هر وقت ئې موړ که - نو په دې سره هم کفاره ادا کیږی۔

دا رنګ که شپږ شلې ورځې ئې یو مسکین یو وقت طعام له راوست - او هر وقت ئې په ګیډه موړ که - نو هم اداکیږی۔

مسئله :- که شپږ شلې مسکینان ئې یووقت طعام له راوستل - ماړه ئې کړه نو کفاره به نه اداکیږی - هاں که د دې نه ئې شپیته تنه دوباره بل وقت ماړه کړه نو اداشوه۔

مسئله :- که دَ شپیتو مسکینانو طعام ئې یو مسکین له په یوه ورځ په ځیر ورکه - یائې ورله په یوه ورځ ورکه - خو جدا جدا اواره - نو په دواړو صورتونو کښې به داګنړلے شی - چه دَ شپیتو حصو نه ئې یوه حصه اداکه - نو یو کم شپیته مسکینان به نور مړه وی - دوه ماله - یا به ورله ورکوی۔

فائده :- څرنګ چه په روژو کښې پرله پسے والے ضروری دے - دا رنګ په طعام خورولو کښې ضروری نه دے - نو که یو مسکین ئې دیرش ورځې دوه ماله موړ که - دَ دے نه پس ئې څه ورځې ناغه کړے - بیائې دیرش ورځې دوه ماله موړ که - نو هم کفاره اداشوه۔

مسئله :- که چا بل ته اوویل چه ځما د طرفه په کفاره کښې مسکینان ماړه که - پس هغه ماړه کړل - نو کفاره به اداشوه - او که د بل دَ طرفه بے د هغه دَ وینا نه چا اداکړه - او هغه ژوندے وُ - نو نه اداکیږی۔

مسئله :- که دَ یوے روژے کفاره پے واجبه شوے وه - هغه ئې ادا کړه - بیا پے بله واجبه شوه - نو وس به بیا اداکوی - هغه اوله دَ دے د پاره کافی نه ده - او که دَ اولے روژے کفاره ئې په ذمه پاتے وه - لا نه ئې وه اداکړے او بله پے واجبه شوه - نو وس دِ یو کفاره اداکی - تداخل به راشی - یعنے دا د

---

۱ درمختار وردالمحتار ۱۲ ۲ هندیه و درمختار ۱۲ ۳ هندیه و درمختار ۱۲ ۴ شامی ۱۲
۵ هندیه وردالمحتار ۱۲ ۶ درمختار و شامی ۱۲

به دَ دواړو دپاره کافي وګرځي. برابره خبره ده چه دغه دواړه روژے د یو رمضان وي. اوکه د دوؤ رمضانونو. خو د تداخل دا بیان هله دے. که دواړه روژے دَجماع اوکه دواړه دجماع وے. یعنے دواړه روژے ئے ماتے کړے وے په سبب دجماع اودَ هغے په وجه پے کفارے واجب شوے وے نو په دے صورت کښں اختلاف دے چه تداخل راځي او که نه. خو دفتوے دپاره دا خبره غوره کړے شوے ده چه کفاره به جدا جدا ورکوی. یعنے مستقل مستقل. او تداخل نه راځي. برابره خبره ده چه دواړه دَ یو رمضان وي اوکه جدا جدا. او برابره خبره ده چه مخکښے کفاره ئے دَ دویمے دَ وجوب نه مخکښے ادا کړے وي اوکه نه. او دا ظاهرالروایت دے. او بعضے وائی چه تداخل راځي. که چرے اوله ئے لا نه وي ورکړے.

**تنبیه**[۱] :- کفاره صرف دَ اداء رمضان د روژے په ماتولو راځي. یعنے د رمضان د ادائی روژے نه سیوا که چا بله روژه ونیوله. مثلاً قضا دَ رمضان. یا نفل. یا نذر وغیره. او بیا ئے قصداً ماته کړه. نو صرف قضا به ئے راوړي. کفاره پے نشته.

| دفدیے بیان |
|---|

[۲]مخکښے بیان شوی دي. چه شیخ فاني که عنیٔ وَ. نو په هغه باندے د رمضان المبارک دهرے روژے په بدله کښں فدیه ورکول واجب دي. خو ښه ئے خپله ده. که دَ رمضان په شروع کښں ورکوی. اوکه په آخر کښں دواړه طریقے جائیز دي. دیوے روژے فدیه دا ده چه یو فقیرله دے دَ سر سایه په مقدار اناج ورکړی اوکه د دے په ځائے ئے قیمت ورکړهم اداکیږي.

**مسئله**[۳] :- که فقیرئے صبا بیګاه طعام له راوست موړ ئے کړه په دے سره هم دیوے روژے فدیه اداکیږي. لیکن که په صدقهٔ فطر کښں ئے دا سے وکړه. نو سر سایه پے نه اداکیږي. په سرسایه کښں تملیک ضروری دے. یعنے مالک ګرځول.

**مسئله**[۴] :- چا چه دَ رمضان روژے د سفر یا د مرض و غیره په وجه یا بلا وجه نه وي نیولی. په هغه باندے فدیه نشته. بلکه قضا راوړل ورله ضروری دي. څومره زرچه ئے کیدے شی. ورډ نیسی. خو ښه ئے خپله ده. که پے در پے ئے نیسی. اوکه په مینځ کښں ناغه کوی. لیکن مسلسل نیول ئے غوره دي. په قضا راوړلو کښں دے بلا وجه تا خیر نه کوی. ګناه دے. اوکه لا نیولے ئے نه وے. چه د دویم کال میاشت د روژے شروع شوه. نو

---

[۱] هندیه و رد المحتار ۱۲ [۲] مبسوط وشرح التنویر ۱۲ [۳] شامی ۱۲ [۴] هدایه ۱۲

وس به دا دائی روژے ونیسی۔ دَ واړه اختر دَ ورځے نه پس دے بیا هغه قضا شوے روژے قضا اوړی۔ په دے صورت کښ پے هم فدیه نشته۔ خو څومره روژے چه تے قضا شوی وی۔ هغه به نیسی۔ زر وی او که پس۔

**مسئله** :- که دَ رمضان قضا روژے پے پاتے وے۔ او هغه ئے لاتر اوسه پورے نه وے نیولے۔ او دے شیخ فانی شه۔ چه نه وس روژے نیوے شی۔ او نه تے دَ آینده دپاره امید دے۔ نو ده له هم پکار دی چه دَ هرے روژے په بدله کښی فدیه ورکی۔

**مسئله** :- مسافر او مریض او تے ورکونکے ښځه او دَ کومے ښځے چه حیض یا نفاس وی۔ دی که په حالت دَ هغه عذر کښی مړه شو۔ چه دَ هغے په وجه ئے روژے قضا شوے۔ نو دَ دغه قضا شوو روژو په دی باندے نه مواخذهٔ اُخروی شته۔ او نه پے دمرګ په وقت کښی وصیت واجب دے۔ هاں که دغه عذر زائل شوے وُ۔ بیا دَ رمضان نه روستو یو څو ورځے ژوندی وُ۔ بیا مړه شی۔ نو څو مره ورځے چه ئے داسے موندلی وی۔ چه دغه قضا روژے ئے په کښی نیوے شوے لیکن ینولے ئے نه وے۔ د دغه مورہ ورځو دفدیے وصیت پے واجب دے۔

مثلاً دیوسړی نه دَ مرض په وجه دَ رمضان المبارک اولے شل روژے قضا شوے۔ بیا جوړ شو۔ پاتے لس روژے ئے اداکړے۔ دَ واړه اختر په اولسمہ شپه بیا سخت ناجوړه شه۔ پریوت۔ او دَ هغے نه مړکیده۔ نو ښځه روژے خو ورته معاف دی۔ او چونکه ښځلس ورځے ئے د روژو نیولو موندلے وے۔ خو ئے وے نیولے۔ د دے وجے نه ورته هغه نه دی معاف۔ نو دفدیے وصیت پے واجب دے چه دا وصیت دے وکی۔ چه څما په ذمه ښځلس روژے پاتے دی۔ دهغے فدیه ورکئی۔ نو که مړ شه۔ او وصیت ئے کړے وُ۔ او مال ئے پریښے وُ۔ دَ هغه په ولی باندے به د ترکے په دریمه حصه کښی دوصیت مطابق عمل کول واجب دی۔ او که وصیت ئے نه وُ کړے۔ او ولی دَ هغه د طرف نه احساناً د خپله ماله یا دَ ټولو وارثانو میراث خورو په رضا مندئ سره د میت د ترکے نه په جایزه طریقه فدیه ورکړه نو هم امید دے چه دَ میت ذمه به خلاصه شی

له فتح القدیر ورد المحتار ۱۲ کے در مختار ورد المحتار ۱۲

مسئله[۱] :- څومره ورځې چه دی ورستو موند لیوی۔ دَ هغې نه ایام منهیه مستثنیٰ دی۔ او ایام منهیه پنځه ورځې دی۔ دَ واړهٔ اختر اوله ورځ۔ دَ لوئې اختر دمیاشتې لسم۔ یولسم۔ دولسم۔ دیارلسم تاریخ۔

مسئله[۲] :- چا چه د رمضان روژې بلا عذره پریخې وی۔ په هغه لازم دی چه په خپل ژوند انه کښې ئې قضا اوری۔ اوکه په ذمه ئې لا پاتې وې۔ او مړ کوئے شه۔ نو دَ هغه روژو دَ فدیئې وصیت دِ وکی۔ اگر که رمضان نه بعد دومره ورځې نه وی موند لے چه قضا شوے روژې ئې په کښې نیوے شوے۔

فایده[۳] :- دَ مړی وترکے نه مینه دَ هغه په تکفین تجهیز کښې صرف کیږی۔ بیا چه څه پاتے شی دَ هغې نه هغه قرضه ورکیږی چه دَ میت په ذمه پاتے وی دَ خلقو۔ بیا چه څه پاتے شی د هغې نه په دریمه حصه کښې د مړی دَ وصیت مطابق عمل رامد کیږی۔ بیا باقی ترکه میراث خواره آخلی۔ نو که میت د دریمے حصے نه دزیات وصیت کړے وُ۔ نو هغه به په دریمه حصه کښې باقاعده جاری شی۔ او دَ دے نه په زیاتی کښې به بے دَ میراث خورو دَ رضا نه نه جاری کیږی۔ هاں که میراث خورے هیڅوک نه وُ۔ نو وصیت ئې په کل کښې هم صحیح دے۔

مسئله[۴] :- دَ چا نه چه مونځونه قضا شوی وی او په ذمه ئې پاتے وی۔ او د مرګ په وقت کښې وصیت وکی چه ځما په ذمه دومره مونځونه دی۔ د هغې فدیه[۵] ورکئې۔ نو د هغه ولی دے په دریمه حصه کښې د وصیت سره مطابق عمل رامد وکی۔ او دَ هر یو وقت فرض قضا شوی مونځ فدیه دے دومره ورکی۔ څومره چه دَ رمضان دیوے روژے ده۔ او دا رنګ حکم دے د قضا شوی وتر او دَ واجب اعتکاف۔ او که میت وصیت نه وُ کړے۔ بلکه دَ هغه ولی دَ هغه دَ طرف نه په جایزه طریقه ورکړه۔ نو هم امید دے چه دَ میت نه په اخروی مطالبه او غور زیږی۔ او دَ میت دَ طرف نه مونځ کول او روژے نیول صحیح نه دی۔ لیکن د میت ذمه په دے سره نه خلاصیږی۔ البته دَ نفل مانځه او دَ روژو ثواب که دَ هغه روح ته بخی نو بخلے شی۔ ایصالِ ثواب کیدے شی۔

مسئله[۶] :- شیخ فانی په ژوندانه کښې دَ خپلو مونځونو فدیه نشی ورکولے۔

فایده[۷] :- دَ کوم میت په ذمه چه صدقه فطر یا زکوٰة یا کفاره پاتے وی۔ او

---

[۱] شامی ۱۲ [۲] شامی ۱۲ [۳] سراجی ۱۲ [۴] در مختار ورد المحتار ۱۲ [۵] شامی ۱۲ [۶] شامی ۱۲

هغه د مرګ نه مخکښ وصیت کړے وی او مال ئے پریخے وی۔ د هغے په ولی باندے د هغه د وصیت سره مطابق په دریمه حصه کښ عمل کول واجب دی۔ نو د میت د ذمے نه به دا حقوق او غورزیږی۔ او که میت وصیت نه وُ کړے او د هغه ولی د هغه د طرف نه صدقهٔ[1] فطر یا زکوٰة ورکه نو دا هم جائز دی۔ دا رنګ که د هغه د قسم په کفاره کښ مسکینانو له جامے ورکړے یا ئے په ګیډه ماړه کړه۔ نو دا هم جائزه ده۔

**فائده**[2] :- څه رنګ چه د دریمے نه په زائده حصه کښ د میت وصیت نه چلیږی دا رنګ په مرض موت کښ د دریمے حصے نه په زائد مال کښ په خپله هم تصرف نه شی کولے۔ نو که په ذمه ئے حقوق الله پاتے وُو لکه زکوٰة کفارات فدیه وغیره او هغه د دریمے حصے د مال نه زائد پریوتل۔ نو نه ئے د غه وخت په خپله اداکولے شی۔ او نه ئے وصیت کولے شی۔ په داسے صورت کښ ورله حیله شته۔ هغه دا ده چه د میراث خورونه دے په غلا ورکی۔ او که په لاس کښ ورځنه څه نه وی نو د چا نه دے قرض واخلی ادا دے کی۔ خو هله که ترکه ئے دومره وی۔ چه بیا به پے دا قرضه په صحیح طریقه ادا شی نو د مرګ نه پس به د قرضے ادائیګی د میراث خورو د تقسیم نه خامخا مقدم ګڼړلے شی او د ده دا کار اګر که قضاءً خلاف دے۔ لیکن دیانةً جائز دے۔

د نذر روژے بیان

**مسئله**[3] :- په کال کښ پنځه ورځے داسے دی چه روژه پکښ منع ده۔ د غه ورځوته ایام منهیّه ویلے شی۔ لکه چه په مخکنی باب کښ ذکر شویدی نو که چا په ځان نذر او منه۔ چه څه به د اختر په ورځ روژه نیسم۔ دا نذر ئے صحیح دے خو په ده لازم دی چه په ایام منهیّه کښ روژه نه نیسی۔ بلکه بله ورځ ئے قضا راوړی او که خدا نخواسته د اختر په ورځ ئے روژه ونیوه۔ نو نذر خو به ئے پوره شی۔ لیکن ګنهګار هم شه۔

**مسئله**[4] :- که د ایام منهیّه را تلونه مینه چا نذر او مانه۔ څه به د دے کال روژے نیسم۔ نو دا نذر صحیح دے۔ په ده لازمه ده۔ چه بے د ایام منهیّه نه نورے ټولے ونیسی۔ او د ایام منهیّه بدله په نورو ورځو کښ راوړی۔

**مسئله**[5] :- که نذر منونکی دا نذر او مانه۔ چه څه به یو کال پوره کال پرله پسے روژے نیسم۔ نو په ده لازم دی چه د ایام منهیّه نه سوا د پوره کال روژے

---

[1] فتح القدیر ۱۲ [2] عالمګیری و ردالمحتار ۱۲ [3] شرح التنویر ۱۲ [4] قاضیخان وعالمګیری و ردالمحتار ۱۲ [5] عالمګیری و شامی ۱۲

متواتر اونیسی۔ او د ایام منهیّه په بدله کښې نورے پنځه قضا راوړی۔ نو په دے پنځو کښې هم پے درپے والے ضروری دے۔ او د میاشتے سره ئے متصلوالے هم ضروری دے۔ نو که داسے ئے ونکړه یعنے په مینځ کښې ئے د ایام منهیه نه چرته بله ورځ قضا کړه۔ نو روژے به بیا د سره شروع کوی۔ اوکه د دے نذر په صورت کښې ئے د پرله پسے والی شرط نه وی ذکر کړے۔ نو د ایام منهیه نه سوا دے نورے ټولے روژے و نیسی۔ بیا دے ورستو پنځه دیرش روژے بڼرے قضا راوړی۔ یعنے یوه میاشت د رمضان په بدله کښې۔ او پنځه ورځے د ایام منهیه په بدله کښې۔

**مسئله**[۱] :۔ که نذر منونکی نذر اومانه چه په ما باندے دیوے میاشتے پرله پسے روژے نیول لازم دی۔ نیسم به ئے۔ نو په ده واجب دی۔ چه دیوے میاشتے روژے پے درپے ونیسی۔ که په مینځ کښې ئے یوه ورځ ناغه کړه۔ بیا به د سره د یوے میاشتے پے درپے روژے پوره کوی۔ اوکه په مینځ کښې ئے ناغه د ایام منهیّه په وجه راغله۔ نو هم دغه حکم دے۔

**مسئله** :۔ که دیوے خاصے میاشتے د مسلسل روژو نذر ئے اومانه۔ نو پے درپے به ئے نیسی۔ لیکن که په مینځ کښې ئے یوه ورځ ناغه کړه۔ نو وس پے د سره نیول لازم نه دی۔ څو د ناغه شوے په بدله کښې به قضا راوړی۔

**فائده** :۔ نذر په دوه قسمه دے۔ یو معلق دے۔ بل مطلق۔ معلق هغه دے چه څه شرط ئے په کښې ایخے وی۔ مثلاً سړے اووائی چه خما روزکه جوړ شه۔ نو څه به یوه میاشت نفل روژے نیسم۔ که خما حوئے وشه۔ نو سل روپئ به خیراتی ورکم وغیره۔

او مطلق هغه دے چه څه شرط په کښې نه وے لګولے شوے۔ په نذر کښې ئے صرف داویلی وی۔ مثلاً چه څه به یوه میاشت نفل روژے نیسم۔ وغیره۔

**مسئله** :۔ که د نذر مطلق په جوړ چا اوویل چه د راتلونکے بزرګے میاشتے روژے په ما نذر دی۔ نیسم به ئے۔ بیا ئے د بزرګے میاشتے د راتلو نه مینه د دے نذر روژے ونیوے۔ نو صحیح خبره داده۔ چه نذر ادا کیږی۔ او په نذر معلق کښې داسے کول جائز نه دی۔ مثلاً سړی ویلی وو۔ چه خما فلانے کار که وشه۔ نو لس نفلی روژے به نیسم۔ بیا ئے دا روژے ونیوے۔ او هغه کار ئے لا نه وُ شوے۔ نو نذر ئے نه

---

[۱] در مختار ورد المحتار ۱۲ [۲] در مختار ورد المحتار ۱۲ [۳] فتح القدیر ودر ودد ۱۲

اداکیږی. که کاری وشه. لس به بیاتیسی.

**مسئله**[1] :- که مثلاً چا اوویل چه د خدائ د پاره په ما لازم دی. چه د فلانے میاشتے نفلی روژے به نیسم. نو په دے قسم کلام کښی نذر او قسم دواړه راتلے شی په دے لحاظ سره شپږ صورتونه رغیږی. نو که په نیت کښے هیڅ نه وو راوستی. یا نیت یے دنذر کړے وُ. او د قسم متعلق یے په خیال کښی هیڅ نه وُ راوستی. یا یے دا نیت کړے وُ. چه دا نذر دے قسم نه دے. نو په دے درے واړو صورتونو کښی به نذر ګڼړلے شی. پس د دغه میاشتے روژے نیول په لازم دی. که وے نه نیولے. نو د هغے قضا به په بله میاشت کښی راوړی.

او که نیت یے دا کړے وُ. چه دا نذر نه دے قسم دے. نو په دے صورت کښی به قسم ګڼړلے شی. نو لازمه ده چه د دغه میاشتے روژے نیسی. که وے نه نیوے. د قسم کفاره به ورکوی. د روژو قضا په لازمه نه ده. او که نیت یے د قسم او د نذر دواړو کړے وُ. یا یے نیت د قسم کړے وُ. او د نذر متعلق یے هیڅ په خیال کښی نه وُ راوستی نو په دے دواړو صورتونو کښی به هم قسم وی. او هم نذر. نو که د دغه میاشت روژے یے ونه نیوے. هم به په د هغے قضا لازمه وی. هم کفاره د قسم.

**مسئله**[2] :- نذر بیا په دوه قسمه دے. یو معین. بل غیر معین. او غیر معین ته مطلق هم ویلے شی. معین دا دے چه خاص یے کړی. مثلاً او وائی چه د دے هفتے د کل د ورځے روژه په ما نذر ده. نیسم به یے

او غیر معین هغه دے چه تخصیص په کښی ونکی. خو مثلاً دا او وائی چه یوه ورځ روژه په ما نذر ده. نیسم به یے. پس د نذر معین روژه چه اداکوی. د هغے د پاره د ورځے دنصف النهار نه مینه پورے نیت کول صحیح دی. او که د نذر معین روژه یے ادا نه کړه نو قضا په لازمه ده. نو چه قضا یے راوړی. د هغے نیت د صبح صادق نه پس کول صحیح نه دی. او د نذر مطلق د روژے دپاره هم پس د صبح صادق نه نیت کول صحیح نه دی. یعنے که شپے یے نیت د روژے نه وکړے. پس د صبح صادق نه یے اراده وکړه. چه راشه نن به د نذر مطلق روژه کم. یا قضا د نذر معین. پس روژه یے کړه. نو نفل روژه ادا شوه. د نذر هغه به بیا نیسی. او دا رنګ حکم دے د صوم کفارے. او د قضاء رمضان.

---

[1] هدایه و عالمګیری و درود ۱۲ [2] مراقی الفلاح و بحر ۱۲

**دَ نفل روژے بیان**

مسئلہ[۱]: بیان شویدی چہ دَ نفل روژے نیت دَ شپے نہ دَ ورځے دَ نصف النهار نہ مینہ پورے کیدے شی۔ نو کہ دَ شپے ئے ارادہ نہ وہ۔ چہ صبا بہ روژہ نیسم لیکن دَ ورځے ئے دَ نصف النهار نہ مینہ نیت وکہ چہ نن م روژہ دہ۔ او دصبح صادق نہ ئے دَ روژے منافی څہ عمل نہ وُو کړے۔ او وے نیوہ نو ادا شوہ۔

**مسئلہ[۲]:** کہ دَ نفل پہ نیت ئے روژہ ونیولہ لیکن بیائے ماتہ کړہ۔ نو دَ ھغے قضا پے لازم دہ۔ او کہ ښځے نفل روژہ نیولے وہ بیا ھغہ دَ حیض پہ وجہ ماتہ شوہ نو ھم دغہ حکم دے۔ چہ قضا پے لازم دہ۔ او مخکښ بیان شوی دی۔ چہ پہ ایام منھیہ کښ روژہ نیول منعہ دی۔ نو کہ دَ اختر پہ ورځ چا نفل روژہ ونیوہ بیا ئے ماتہ کړہ۔ دَ ھغے قضا پے نشتہ۔

**مسئلہ[۳]:** کہ دَ رمضان قضا روژے ئے پہ ذمہ باقی وے۔ ھغے ئے لا نہ وی نیولے۔ او دَ نفل روژہ ئے نیولہ نو ھم نیولے شی۔

**مسئلہ[۴]:** ښځہ دے بے دَ خاوند د اجازت نہ نفل روژہ نہ نیسی۔ کہ وے نیولہ۔ او بیائے پے خاوند ماتولہ۔ نو ماتہ دے کی۔ بیا بہ ئے قضا راوړی۔ او کہ خاوند ئے ناجوړہ وُ۔ یا پہ سفر کښ وُ۔ بیا اجازت اغستو تہ ضرورت نشتہ۔

**مسئلہ[۵]:** کہ میلمہ نفل روژہ نیولے وہ۔ او میزبان دَ ھغہ پہ طعام نہ خوړلو خفہ کیدہ۔ نو روژہ ماتولے شی۔ بیا بہ ئے قضا راوړی۔ دا رنګ کہ میزبان (کوربہ) نفل روژہ نیولے وہ۔ او میلمہ پہ دے خفہ کیدہ۔ چہ دے راسرہ نہ خوری۔ نو دا ھم د روژہ ماتو لو پہ عذر دے۔ ماتولے شی۔ بیا بہ ئے قضا راوړی۔

**مسئلہ[۶]:** دعاشورا د پہ ورځ یعنے دَ محرم پہ لسم تاریخ نفل روژہ نیول مستحب دی۔ کوم وخت چہ نبی علیہ السلام مدینے منورے تہ ھجرت اوفرمایہ۔ او یھودیان ئے ولیدل چہ دَ عاشورا د پہ ورځ روژہ نیسی۔ دَ ھغوی نہ ئے پہ دے بابت کښ تپوس وکہ۔ نو ھغوی اووے چہ پہ دے ورځ خدائے پاک موسٰی علیہ السلام او بنی اسرائیل لہ نجات ورکړے وُ۔ او فرعون ئے سرہ دَ خیل قامہ غرق کړے وُ۔ نو موسٰی علیہ السلام پہ شکریہ کښ دغہ ورځ روژہ نیولے وہ۔ مونږ ھم دَ ھغہ پہ متابعت کښ پہ دے ورځ روژہ نیسو۔ نبی علیہ الصلوٰۃ و السلام

---

[۱] شرح التنویر ۱۲ [۲] در مختار و رد المحتار ۱۲ [۳] عالمگیری ۱۲ [۴] ھندیہ و دردرد ۱۲
[۵] شرح التنویر ۱۲ [۶] شامی ۱۲ [۷] متفق علیہ ۱۲

اوفرمائیل۔ چہ دَ موسیٰ علیہ السلام سرہ پہ دے کار خیر کښں دَ موافقت کولو موږ ستاسو نہ زیات حقدار یو۔ نو نبی علیہ السلام پہ خپلہ ھم روژہ د نیوہ۔ او امت تہ ئے ھم دَ دے حکم وکہ۔

او پہ بعض روایتونو کښں راغلی دی۔ چہ نبی علیہ السلام فرمائیلی۔ دَ دے روژے پہ ثواب کښں ځہ امید کوم چہ دَ تیر شوی کال دَ گناھونو کفارہ بہ وگرځی۔ ځینے عالمان وائی چہ دا روژہ مینہ فرض وہ۔ بیا منسوخہ شوہ۔ لیکن استحباب ئے وس ھم باقی دے۔ لیکن چہ دا روژہ نیسی۔ دَ دے سرہ دے دَ نھم تاریخ روژہ ھم ونیسی۔ دَ پارہ دَ دے چہ مخالفت راشی دَ یھودو نہ۔ دغہ وجہ دہ چہ نبی علیہ السلام فرمائیلی وو۔ کہ ځہ مجے کال لہ ژوندے وُم۔ نو دَ نھم تاریخ روژہ بہ ورسرہ ھم نیسم۔ او کہ صرف دَ یولسم تاریخ روژہ ورسرہ تل کړے شوہ۔ پہ دے کښں ھم څہ بدی نشتہ۔ او کہ دَ نھم او دَ یولسم دواړہ روژے ورسرہ ونیوے شوے نو لا ډیرہ غورہ دہ۔

مسئلہ:۔ دَ شوال دَ شپږو ورځو متعلق پہ حدیث[۱] شریف کښں راغلی دی چہ چا دَ رمضان المبارک روژے ونیوے۔ بیا ئے دَ وارہ اختر پہ میاشت کښں شپږ نفل روژے ھم ونیوے نو داسے شہ۔ چہ گویا ټول عمر ئے روژے ونیوے۔ دَ دے وجہ دا معلومیږی چہ خدائے پاک پہ خپل فضل سرہ دَ یوے نیکئ ثواب کم نہ کم یو پہ لس ورکوی۔ لکہ چہ فرمائیلی دی:۔ مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا. چا چہ یوہ نیکی وکړہ۔ دَ ھغہ دَ پارہ دَ ھغے لس مثلہ دی۔ او دَ روژے میاشت اگر کہ اتفاقاً دَ یو کم دیرش واقع شی۔ بیا ھم دَ ثواب پہ لحاظ سرہ پورہ دَ دیرش گنړے شی۔ نو چہ موږ لس لہ پہ دیرش کښں ضرب ورکړو۔ حاصل ضرب درے سوہ شو۔ دا رنگ دَ شوال شپږ روژے چہ موږ یو پہ لس کړے۔ شپیتہ شوے۔ نو ټولے شوے ۳۶۰ تلس شلے۔ او دَ یو کال ورځے ھم دومرہ دی۔ نو چہ ھر کال پہ دے عمل کوی۔ داسے شی۔ لکہ عمری روژہ دار۔ لہ دے وجہ نہ نبی علیہ السلام وفرمائیل چہ گویا ټول عمر ئے روژے ونیوے پس پکار دی۔ چہ دا شپږ روژے ھم ونیوے شی۔ پرلہ پسے ئے نیسی۔ او کہ پہ مینځ کښں ناغہ کوی۔ لیکن دومرہ خبرہ ضروری دہ۔ چہ دَ اختر پہ ورځ دے روژہ نہ نیسی۔ او دا شپږ روژے دے عقیدۃً ضروری نہ گنړی۔ او دَ ایام بیض یعنے دَ قمری میاشتے دَ دیارلسم څوارلسم پنځلسم تاریخ دَ روژو متعلق پہ حدیث[۲] شریف کښں

---

[۱] رواہ مسلم ۱۲ [۲] رواہ ابی داؤد ۱۲

راغلی دی۔ چه څوک په هره میاشت کښې درے روژے نیسی ګویا هغه ټول عمر روژے ونیوے۔ ددے وجه هم تقریباً هغه ده۔ کومه چه د شوال د روژو په بیان کښې ذکر شوه۔ ځکه چه درے له په لس کښې ضرب ورکړے شی۔ نو دیرش راځی۔ او قمری میاشت اکثر د دومره ورځو وی۔

**مسئله**:- د کل په ورځ او د زیارت په ورځ او د جمعے او داسے نور د بزرګے میاشت په اوولسم تاریخ او د شوقدر په نهلسم تاریخ روژه نیول هم ډیر ثواب لری۔ او د لوئ اختر په نهم تاریخ روژه نیول هم لوئ د ثواب کار دے۔ البته که حج ئے کاؤ۔ او ورسره ئے وه۔ چه د عرفے روژه که نیسم د ضعف په وجه به وقوف د عرفے ونکړ لشم۔ نو ده له په دغه ورځ روژه نیول مکروه دی۔) نبی علیه السلام فرمائی چه ځه د خدائے پاک د فضل نه امید کوم چه د عرفے روژه به د تیرشوی او د راتلونکی کال کفاره اوګرځی۔ بلکه د لوئے اختر د اول تاریخ نه که د نهم تاریخ پورے روژے ونیوے شوے نو ډیره غوره خبره ده۔ په حدیث شریف کښې ئے لوئے فضیلت راغلے دے۔

**د اعتکاف فضیلت** په احادیث کښې د اعتکاف لوئے فضیلت بیان شوے۔ لهٰذا مونږ له پکار دی چه دا هم اداکوؤ۔

په یو حدیث کښې راغلی دی چه اعتکاف کوونکے د ګناهونو نه په ډیره د اعتکاف په ځائے کښې ناست وی۔ او ده ته د هغه نیک عملونو ثواب هم ملاویږی چه ده نه دی کړی۔ یعنے د عبادت او طاعت ثواب خو ورته ملاویږی۔ د دے نه علاوه د نورو اعمال خیر ثواب هم حاصلیږی۔

یو حدیث دے چه چا په رمضان کښې لس ورځے (یعنے عشره اخیره) اعتکاف وکړ۔ نو دغه اعتکاف به ئے په مثل د دوه حجه او د دوه عمرے شی۔ یعنے هغه ته د دوؤ حجونو او د دوؤ عمرو ثواب حاصلیږی۔

یو حدیث دے۔ چه چا د ثواب د پاره اعتکاف وکړه په اخلاص سره۔ نو د هغه تیرشوی ګناهونه ټول معاف شو۔ (یعنے صغیره) ابن شهاب صاحب یو لوئے محدث تیرشوے دے۔ هغه وائی د تعجب خبره ده چه خلقو اعتکاف وله پریخود۔

---

۱ هندیه وردالمحتار ۱۲ ۲ رواه مسلم ۱۲ ۳ رواه ابن ماجه ۱۲ ۴ رواه البیهقی ۱۲ ۵ رواه الدیلمی ۱۲
۶ مبسوط سرخسی ۱۲ ع په دے کښې اختلاف دے چه تنها د دے ورځے روژه نیول مکروه دی او که نه۔ نو صحیح خبره دا ده چه وځ۔ نو بله د ورسره هم ونیسی بشامی ۱۲ منه

حال دا دے چه نبی علیه السلام به اکثر یو نفل کار کاوٙ ـ او کله به ئے پر یخوده هم ـ لیکن اعتکاف ئے تر وفاته پورے نه دے پریخے ـ دارنګ یو بل محدث عطاء صاحبؒ وائی ـ چه ذ معتکف داسے مثال دے ـ لکه یو سړے چه یو امیر ته خپل حاجت پیش کول غواړی ـ او ذ هغه په دروازه کیني ـ وائی چه زه ذ دے ځائے نه هرګز نه خوزم ـ تر کومے پورے چه حاجت م ذ سره شوے نه وی ـ دارنګ معتکف انسان د مغفرت طلبولو ذ پاره ذ خپله خالق و مالک په کور کښې ناست ګویا په زبانِ حال سره وائی ؎

دست از طلبش دارم تا کامِ من بر آید

یا تن رسد به جانان یا جان زتن بر آید

نو اِعتکاف چه په خلوص او په صداقت سره وی ـ ډیره ذ فضیلت خبره ده ـ لهٰذا مسلمان له پکار دی چه دداسے غوره عبادت نه ځان نه محرومه کوی ـ

**ذ اِعتکاف اقسام** | **مسئله** :ـ اعتکاف په درے قسمه دے ـ یو واجب ـ دویم سنت موکده ـ دریم مستحب ـ واجب هغه دے چه عاقل بالغ مسلمان ئے په خپله ژبه دنذر په ذریعه په ځان لازم کی ـ دا اِعتکاف بے دروژے نه نه صحیح کیږی ـ دغه وجه ده چه ددے دپاره کم نه کم یوه ورځ ضروری ده ـ او ذ زیات په جانب کښې ئے دله څه خاص حد نشته ـ بلکه نذر منونکے چه ذ هر څومره ورځې ذ اعتکاف نیت چه وکی ـ په هغه میاشت کښې چه وی ـ ذ هغه ورځو اعتکاف به ذ هغه په ذمه واجب شی ـ او ددغو ورځو روژه ورسره هم لازمه ده ـ نو که چا نذر راومانه ـ مثلاً چه ځه به ذ شوقدر په میاشت کښې اعتکاف کوم بے ذ روژو نه ـ یعنې ذ هغے روژے به نه نیسم بیا ئے هم د هغے روژے په ذمه لازم دی ـ سره ذ اعتکاف ـ

**مسئله** :ـ که چا دیو معین رمضان د پوره میاشتے اعتکاف نذر راومانه ـ نو هغه له پکار دی چه د نذر سره مطابق عمل وکی ـ ددغه رمضان روژے به وله کافی شی ـ او که په دے صورت کښې ئے ذ دغه رمضان روژے ونیوے ـ لیکن اعتکاف ئے ادا نکه ـ نو په ده لازمه ده ـ چه بیا یوه میاشت نفلی روژے ونیسی ـ او په هغے کښې ذ اعتکاف قضا راوړی ـ او په را تلونکی رمضان کښې ذ دے اعتکاف قضا صحیح نه ده ـ البته که ذ اعتکاف سره ئے د هغه معین رمضان روژے هم په څه وجه سره ځولے قضا شوے وے ـ نو هغه قضا شوے روژے دے پے درپے ونیسی ـ او اِعتکاف

---

ل مرقاة ولمعات وشامی ۱۲ ؎ خو ذ ایام منهیه اعتکاف په نذر کښې تفصیل شته ۱۲ منه ؎ درمختار و ردالمحتار و تلویح ۱۲

دے پکښې وکي - په دے صورت کښې د نفلي روژو ضرورت نشته - او د نورو واجبو روژو
په ضمن کښې دا اعتکاف قضا نه شي راوړے -

**مسئله** :- که چا د یو څو ورځو د اعتکاف نذر اومانه - نو په هغې کښې په درپے والے
ضروري دے - او شپې پکښې هم داخل وي - مثلاً نذر منونکی اووے چه څه به لس ورځے
اعتکاف کوم - نو په ده به مسلسل د لسو ورځو اعتکاف واجب وي - اګر که ده د پے
درپے والي شرط نه وي ذکر کړے - او دا رنګ لس شپې به پکښې هم داخل ګڼلے شي - نو د
نور پریوتو نه دے مینه په اعتکاف کښې کیني - او په لسمه ورځ دے د نور پریوتو نه
پس بس کي - او په کومه ورځ چه ناست دے - هغه ورځ پکښې حساب نه ده - او که په دے
صورت کښې نذر منونکي د نذر منلو په وقت یوازے د ورځو نیت کړے وُ - بیا به په کښې
شپې داخلے نه وي - او دا نیت به ئے صحیح ګڼلے شي -

**مسئله** :- د رمضان المبارک په اخیري لسو ورځو کښې اعتکاف سنت
موکده دے - علی الکفایه - یعنے که په یوه ښار ده کښې یو تن وکړ - د ټولو نه به مطالبه
وغورزیږي - او که هیڅ چا ونکه - نو د سنت موکده د پریښودلو چه څه حکم دے -
هغه به په ټولو عائد کیږي - د دے اعتکاف د پاره هم روژه شرط ده - نو که چا د
رمضان په اخیري لسو ورځو کښې د څه وجې نه روژه ونه نیوه - او اعتکاف ئے وکړ -
نو اعتکاف مسنون ئے نه اداکیږي - بلکه نفل به شي -

**مسئله** :- کوم عاقل مسلمان بنده چه اعتکاف مسنون اداکول غواړي
هغه له پکار دي چه د رمضان المبارک په شلمه ورځ د نور پریوتو نه مینه په جماعت
کښې د اعتکاف په ځائے کښې په نیت د اعتکاف کیني - او بیا چه ضباله اختر وي -
نن دے د نور پریوتو نه پس بس کي - که میاشت دیوکم دیرش وه - او معتکف نهه
ورځے په اعتکاف کښې کیناست - نو هم به ئے ثواب کامل ګڼلے شي - ځکه چه
اعتبار نیت لره دے -

**مسئله** :- دا مسنون اعتکاف هم په شروع کولو سره واجب کیږي - نو که
چا پس د شروع کولو نه فاسد که - قضائے ئے لازمه ده -

**مسئله** د هر اعتکاف د پاره نیت ضروري دے - د نیت نه بغیر یو قسم اعتکاف
هم صحیح نه دے - دا رنګ د اعتکاف د پاره دا هم ضروري ده چه په جماعت کښې دے دي

---

[1] نهایه ودرودد ۱۲ [2] در مختار ورد المحتار ۱۲ [3] کوکب دری ۱۲ [4] څو په طریقې د تحنا کښې ئے اختلاف شته - فتح القدیر وشامی ۱۲ [5] در مختار ورد المحتار ۱۲

او عوره اعتکاف هغه دے۔ چه وی په کعبه مکرمه کښ۔ بیا هغه چه وی په مسجد نبوی کښ۔ بیا په مسجد اقصیٰ یعنی په بیت المقدس کښ۔ بیا په جامع مسجد کښ چه جماعت پکښ کیږی۔ او که جماعت پکښ نه کیږی نو د محلے جماعت تے عوره دے۔ بیا په هغه جماعت کښ چه نمازیان ئے ډیروی۔

**مسئله** :- د واجب او د مسنون اعتکاف نه سوا بل اعتکاف ته اعتکاف مستحب او نفلی ویلے شی۔ د دے د پاره نه روژه ضروری ده۔ نه پوره ورځ۔ بلکه یو ګهنټه او ددے نه لا هم کم کیدے شی۔ (علی القول المفتیٰ به) نو که څوک د یو ګهنټے پورے په دے اعتکاف کښ کیناست۔ بیا پاسیده۔ لاړو۔ نو مونږ به دا نه وایو۔ چه اعتکاف ئے مات که۔ بلکه دا به وایو۔ چه دده دا نفلی اعتکاف یو ګهنټه و۔

د اعتکاف احکام

**مسئله** :- معتکف ته دا اجازت نشته چه د جمات نه باهر وځی۔ البته د طبعی ضرورت د پاره وتے شی۔ یعنی د ډیرو او لویو بولو د پاره۔ او دا رنګ که د خوړلو سکلو ضرورت و۔ او د دا وړلو څوک و نه۔ نو د هغے د پاره تلے شی۔ دا رنګ که د استنجا او د غسل ضرورت و۔ او د مسجد په چار دیوارئ کښ د دے ضرورت پوره کولو ځائے نه و۔ نو هم په باهر وتو کښ څه حرج نشته۔ لیکن په دے ټولو صورتونو کښ پس د فراغت د ضرورت نه فوراً راتله ضروری دی۔ هسے دے نه حصار ېږی۔

**مسئله** :- د بانګ ویلو ځائے ته که دروازه د باهر د جانبه وه۔ او موذن معتکف و۔ نو که دے د بانګ ویلو د پاره هغه ځائے ته ځی۔ خیر دے تلے شی۔

**مسئله** :- که معتکف په داسے جمات کښ د اعتکاف د پاره ناست و۔ چه په هغے کښ د جمعے مونځ نه کیده۔ نو چونکه شرعی ضرورت دے۔ د دے د پاره د صلوٰة جمعے د پاره بل جمات له تلے شی۔ لیکن د وخت نه مخه دے نه ځی۔ بلکه د زوال نه پس دے روانیږی۔ البته که ځائے لرے و۔ د نه رسیدو ویره وه۔ نو د زوال نه مخکښ په تلو کښ حرج نشته۔ بهرحال داسے وخت دے روانیږی چه هلته ورسی۔ او د تحیة المسجد او د سنتونو نه پس خطبه واوری۔ بیا د فرضونو نه پس چه د سنتونو نه فارغ شی۔ بیا دے والپس شی۔ لیکن که په هغے جمات کښ حصار شه۔ اعتکاف ئے نه فاسد ېږی۔ برابره خبره ده۔ چه لږ ساعت حصار شو یوی۔ او که ډیر۔ بلکه باقی اعتکاف که ئے هلته پوره که۔ هم نه فاسدیږی۔ خو داسے کول مکروه دی۔

---

۱ درمختار ورد المحتار ۱۲ ۲ درمختار وشامی ۱۲ ۳ درمختار وشامی ۱۲ ۴ مبسوط ۱۲ ۵ درودرد ۱۲

**مسئله**[1] :- هر کله چه بنده په اعتکاف کښې دَ ټولو دنیاوی تعلقاتو نه برطرف دَ خداوند قدوس دَ عبادت دپاره دَ هغه په کور کښې په نیت دَ تقرب کیناستے - نو ده له لازم دی چه دَ اعتکاف ختمیدو پورے بے دَ طبعی یا دَ شرعی ضرورت نه بانهر نه وځی - او ضرورت هغه معتبر دے - کوم چه دربینه مخکښې ذکر شوے - دَ هغے نه سوا دَ بل ضرورت اعتبار نشته - دغه وجه ده چه حضرت امام اعظم صاحبؒ فرمائی چه معتکف که دَ وړو لویو وغیره دپاره دَ جماعت نه اووځی - او په لار کښې قرضخواه حصار که - نو اعتکاف به ئے فاسد شی - بلکه په هیبره اووځی یا جبراً قهراً او ویستلے شه اگر که ذلی ساعت دَ پاره وی - په دے سره هم اعتکاف نه فاسد یږی -

دارنګ که دَ مریض دَ پُوښتنې دپاره - یا دَ ډوبیدونکی دَ را ایستو دپاره یا دَ سوځنکی دَ بچاؤ دَ پاره اووځی - یا دَ خپل مرض په وجه اووځی - نو دَ دے ټولو صورتونو حکم دا دے چه اعتکاف ئے فاسد شه (خو دَ صاحبینو رحہ خلاف پکښې شته) په دے صورتونو کښې په وتلو کښې څه ګناه نشته - لیکن دَ امام صاحب رحہ په نیزدے اعتکاف فاسدیږی هاں که مثلاً دَ وړو لویو دپاره وتے وُ - دَ هغے نه پس ئے اتفاقاً بیمارپرسی وکړه - یا په جنازه کښې شریک شه - وغیره ذالک - نو په دے سره اعتکاف نه فاسدیږی دارنګ که معتکف دَ نذر منلو په وخت کښې دا شرط ذکر کړے وُ - چه مریض بیمارپرسئی له به ځم - په مجلس دوعظ کښې او په جنازه کښې به شرکت کوم - نو بیا ده له په تلو کښې څه حرج نشته -

**مسئله**[2] :- په اعتکاف کښې چپ چاپ کیناستل او دا باعث ثواب گنړل مکروه تحریمی دی - معتکف له پکار دی چه ناکاره خبره له خولے نه نه اوباسی - بلکه ښه چه خوږوی - نو په خیر سره لکه تلاوت دقرآن پاک - درس دَ احادیث شریفه - تسبیح وتهلیل - درود و استغفار - قصص انبیاء - حکایاتِ صالحین وغیره وغیره -

غرض دا دے چه کله دے نقل کوی - او کله دے مذکوره خبرے دَ خیر کوی - په اعتکاف کښې دَ دے ټولو گنجائش شته - او دَ ضرورت سره مطابق دنیاوی جایزے خبرے هم کولے شی - او خدا نخواسته که معتکف چاته کنځل وکړه - یا ئے ورسره جګړه وکړه - نو بد ئے وکړه - خو اعتکاف ئے نه فاسدیږی - او دَ معتکف[3] دَ پاره دا اعتکاف په ځائے کښې خوړل سکل او ده کیدل وغیره جائز دی - دارنګ که ده

---

[1] در مختار و شامی ۱۲ [2] در درد ۱۲ [3] هدایه ۱۲

تہ دَ څہ شي دَ خرید وفروخت ضرورت پیښ شہ ۔ نو داھم پہ جماعت کښې کولے شي ۔ خو ھغہ شے دے جماعت تہ نہ راوړي ۔

**مسئلہ[۱]:** ښځہ کہ اعتکاف کول غواړي ۔ مېړہ دے دَ خاوند نہ اجازت واخلي کہ ورے کہ نو دَ کور پہ جُماعت کښې یعنې کومہ حصہ چې دَ مانځہ دَ پارہ خاص کړے شوې وی ۔ پہ ھغې کښې دے پہ نیت دَ اعتکاف کیني ۔ خو ھلہ کہ دا دَ حیض ونفاس پاکہ وی ۔ دغہ مقام دَدے دپارہ داسے دے ۔ لکہ دَ سړي دَپارہ جماعت ۔ باقي احکام څنګ چې پہ سړي جاری کیږی ۔ پہ دے بہ ھم جاری کیږی ۔

**مسئلہ[۲]:** کہ ښځې دَ یوے میاشتې داعتکاف نذر منلے وی ۔ اوَدَدے نذ دَ پورہ کولو دَپارہ پہ اعتکاف کښې ناستہ وی ۔ کہ پہ دے منځ کښې دَ ھغې حیض شروع شہ ۔ نو چونکہ پہ حالت دَ حیض کښې نہ روژہ شتہ نہ اعتکاف ۔ دَدے وجې نہ پہ ھغې لازمہ دہ چې دَحیض دَورځو اعتکاف قضا راوړي ۔ لیکن دا قضا دا دا سرہ متصل کول اوپے درپے کول ضروری دی ۔ کہ یوہ ورځ ئے پہ مینځ کښې پریخودہ ۔ بیا بہ پے دَ یوے میاشتې اعتکاف واجب وی ۔

**مسئلہ[۳]:** کہ ښځې نذ داومانہ چې ھر کلہ چې وی ځہ بہ لس ورځې اعتکاف کوم ۔ بیا پہ اعتکاف کینا ستہ ۔ پہ دے مینځ کښې ئے حیض شروع شہ ۔ نو لازمہ دہ ۔ چې دپاکئے پہ حالت کښې بیا پورہ لس ورځې اعتکاف وکی ۔

**مسئلہ[۴]:** معتکف کہ پہ ھیرہ سرہ دورځې څہ خوراک سکاک وکہ ۔ پہ دے سرہ اعتکاف نہ فاسدیږی ۔ اوکہ جماع ئے وکړہ پہ فرج کښې نو فاسد بہ شي ۔

مثلاً معتکف دَ بولو دپارہ کور تہ لاړ ۔ ھلتہ ئے اتفاقاً دښځې سرہ مباشرت وکہ ۔ یا ښځہ ئے ھم پہ جُماعت کښې معتکفہ وہ ۔ اګر کہ دَ ښځو دپارہ پہ جُماعت کښې اعتکاف مکروہ دے ۔ بھرحال مجامعت چې پہ فرج کښې وکی ۔ پہ دے سرہ اعتکاف فاسدیږی برابرہ خبرہ دہ چې پہ ھیرہ وی اوکہ قصداً ۔ اوَدَورځې وی اوکہ دشپې ۔ او انزال شوے وی اوکہ نہ ۔ اوکہ انزال ئے دبل طور پہ جماع سرہ وشہ ۔ نو ھم پے ناسیږی خو پہ احتلام سرہ نہ فاسدیږی ۔ اوکہ ښځې تہ ئے پہ شھوت سرہ نظر کاؤ ۔ صرف پہ دے سرہ یا صرف پہ فکر سرہ ئے انزال وشہ ۔ یائے ښځہ مَسہ کړہ ۔ یائے ښکل کړہ ۔ او انزال ئے ونشہ ۔ نو کار خوئے بد وکہ ۔ لیکن اعتکاف پے

---

۱ درمختار وشامی ۱۲ ۲ مبسوط ۱۲ ۳ مبسوط ۱۲ ۴ درمختار ورد المحتار ۱۲

نه فاسدیږی۔

**فایده** :- په کومو څیزونو سره چه روژه ماتیږی په هغے اعتکاف هم فاسدیږی او دا ضروری نه ده چه په کومو څیزونو سره اعتکاف فاسدیږی۔ په هغے دے روژه هم فاسدیږی۔

**مسئله** :- خاوند که ښځے له د اعتکاف اجازت ورکه۔ او هغه کیناسته۔ نو وس دے ورسره د اعتکاف په ورځو کښې جماع نه کوی۔ اجازت ورنه نشته